# فولکلوري ګلونه

لیکوال



# علي محمد منګل



دافغانستان دعلوموا کاډیمي





۱۳۶۰هـ ش

کابل — افغانستان

95






# فولکلوري ګلونه

ليکوال

څېړنمل علي محمد منګل

د افغانستان د علومو اکاډيمي

د ژبو، هنر او ادبياتو علمي او تحقيقي مرکز

د ژبپوهنې څانګه

د چاپ شمېر: ۵۰۰ ټوکه

د چاپ ځای، دولتي مطبعه

د چاپ کال: ۱۳۶۰ هـ.ش.

کابل - افغانستان

**دپسول او گانی انځور گر:**

محبوبه الهام او فضل احمد مقصودی.

زه ددغو دواړو ځوانو اوتکړه هنرمندانو دزیار مننه کوم او په‌دی غوره لارکی یی زیات بریالیتوب غواړم .

# اهداء

## د فولکلوري ګلونو

دغه خواره واره مواد د میرویس نیکه، احمدشاه بابا، سوري شېرشاه، پیر روښان، امیرکروړ، خوشال خټک، رحمان بابا، حمید ماشوخېل، غازي محمد اکبرخان، غازي امان الله خان، محمدګل مومند، محمدګل نوري، او ورپسې ټولو اروا ګانو ته او هم ارنګه د دې هېواد ونورو مېړنيو، علمي او ملي شخصیتونو ته په ډېر درنښت وړاندې کوم.

علي محمد منګل

# مننه

* د هېواد نومیالي شاعر او د افغانستان د علومو د اکاډمۍ لوی رئیس ته کور وداني وایم چې د ښه نیت له مخې یې د علمي درجې د لوړتیا او د دې کتاب د چاپولو زمینه مساعده کړه .
* خېړندوی محمد اکبر معتمد ، خېړندوی محمد صدیق روهي او خېړنوال عبدالرحیم خدران ته د ښه او آرام ژوند هیله کوم چې د علمي درجې د لوړېدو د پاره یې د خاصې علاقې له مخې د غه کتاب ته مثبتې نظرې ورکړې .
* د خېړندوی محمد صدیق روهي ، خېړنوال عبد الرحیم خدران او خېړنیار زلمي هېوادمل نه ډېره ډېره مننه کوم چې په خپلو مثبتو نظریو یې دا کتاب د چاپ وړ وباله .
* د افغانستان د علومو د اکاډمۍ د واکمنې جرګې محترمو غړو (خېړندوی دوکتور دولت محمد لودین ، پوهاند بلبل شاه جلال ، خېړنوال دوکتور سید ال شاه پولاد ، خېړنمل

دوکتور عبداللطیف جلالي ، ښاغلي پوهنوال عبدالحکیم هلالي او ښاغلي پوهنیار مصطفی نژدي) ډېر منندوی یم چې د کتاب د چاپولو سره یې موافقه وکړه .

*. د افغانستان د علومو د اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د انستیتیوټ د ټولو مسلکي غړیو د ژړه د ژړه ورند او د پرداخته غواړم چې په علمي مجلس کې یې د دې اثر د چاپ سره په ډېره مینه موافقه وکړه .

*. د منلي او ګران ورور ښاغلي نصیر هنر پسنتون زیار او زحمت ته په ډېره درنه سترګه ګورم چې د زباني علاقې له مخې یې د دې کتاب د دې راین منلي او د ې نیمګړې اثر ته یې په زړه پورې عنوانونه په سنګلي خط سره خطاطي کړې دي . خدای (ج) دې یې په هنر او قلم برکت کېږدي .

علي محمد منګل

د زمري میاشت ۱۳۶۰




# لومړی برخه نظريې

## اوسریزه

# دوهمه برخه پسول

## اوګانه

## دریمه برخه پرېکړی

### او نرخونه

# څلورمه برخه د جنګ په وخت کې

## ځينې اصطلاحګانې

سرلیک — مخ



# پنځمه برخه لوبې (مستي)

سرلیک | مخ

# شپږمه برخه د لوبو په وخت کې

## اصطلاحگانی



# اوومه برخه د ماشومانو

## فولکلور

# د څېړندوی محمد صديق روهي نظريه

## د ژبو او ادبياتو د انستيتوت محترم رئيس صاحب!

د ښاغلي علي محمد منګل (فولکلوري ګلونه) چې د منګلو له باغونو، د بڼو، او ځنګلونو څخه راټول شوي دي، په رښتيا سره د تازګۍ او طراوت وږمې خپروي او د فولکلور پېژندونکو د دماغ معطر کوي. په (فولکوري ګلونه) کې لومړۍ برخه ګانو او پسولونو ته وقف شوې ده چې د موادو په لحاظ ډېر ګرانبها پسولونه پکښې معرفي شوي دي.

لومړی

په دوهمه برخه کې يې (نرخونه) راغلي دي چې د پښتنو د قبلوي سيستم د کوږ يوه روښانه هینداره ګڼل کېږي . دريمه برخه يې چې په محلي لوبو پېيل شوي ده دننداري ورده اودکتو نکو د پاره تفريحي او تفنني مواد برابر وي . په څلورمه برخه کې دماشومانو و نيو ته پاملرنه شوي ده چې په کتاب کې دماشومانو دفولکلور (وړوکيو فولکور) په نامه يادېږي او دماشومانو شوخي پکښې تمثيل شوي دي .

(فولکلوري ګلونه) يوازې تشريحي بڼه لري او د فولکلوري تيورۍ د پاره ډير ارزښتمن مواد برابر وي .

ښاغلي منګل ددې اثر په ليکلو سره د افغاني فولکلور پيژندنې په لاره کې ستر ګام اوچت کړی دی، په تېره د ماشومانو د شيرۍ په برخه کې دده جرأت د ستاينې وړ دی که په (فولکلوري ګلونه) کې ځای په ځای خودرويه او وحشي ګلونه ليدل کېږي، دغه کار هم دراټولو و نکي په کريډت کې حسابېږي چې بې له تو پيره يې د باغ او سارا فولکلوري ـ ګلونه راټول کړي دي او رنګينه ګيډۍ يې تړې جوړه کړې ده . د فولکلور ګلونه ماتيار غواړي او بايد خدمت يې وشي که نه د دې امکان لري نه دي چې دغسې ګلونه دې ډير ژر مړاوي او په فنا محکوم شي . د کتاب چاپولو سره موافقه لرم او چاپ يې ضروري هم ګڼم .



# د څېړنوال عبدالرحيم ځدران نظريه

## د ژبو او ادبیاتو د انستیتوت محترم رئیس صاحب!

د ښاغلي څېړنمل علي محمد مڼګل «فولکلوري ګلونه» کتاب مې ولوست. په دغه اثر کې محترم لیکوال زموږ د غني فولکلور په ډېرو نا څرګندو خواوو باندې رڼا اچولې او ډېر نوي مواد یې پکښې را غونډ کړي دي. دغه اثر بر سېره پر دې چې فولکلوریستانو او علاقمندانو ته ډېر نوي مواد په لاس ور کوي، او زموږ د هېواد د فولکلور د یوې برخې یعنې د مڼګلو د فولکلور په پېژندلو کې هم پوره مرسته کوي. دا چې ده په خپل دغه زیار سره زموږ د فولکلور ځینې برخې د ورکېدو څخه بچ کړې دي او زموږ د بډای اولسي ادب دغه برخه یې په خپل دغه اثر کې خوندي کړې ده، زه یې چاپېدل غوره ګڼم.

درېم

په دوهمه برخه کې يې (ترخونه) راغلي دي چې د پښتنو د قبلوي سيستم د کوډ يوه روښانه هينداره ګڼل کېږي. دريمه برخه يې چې په محلي لوبو پيل شوې ده د ننداري وړده او د کتونکو د پاره تفريحي او تفنني مواد برابروي. په څلورمه برخه کې د ماشومانو ونډې ته پاملرنه شوې ده چې په کتاب کې د ماشومانو د فولکلور (وړوکيو فولکلور) په نامه يادېږي او د ماشومانو شوخۍ پکښې تمثيل شوې دي.

(فولکلوري ګلونه) يوازې تشريحي بڼه لري او د فولکلوري تيورۍ د پاره ډېر ارزښتمن مواد برابروي.

ښاغلي منګل د دې اثر په ليکلو سره د افغاني فولکلور پېژندنې په لاره کې ستر ګام اوچت کړی دی، په تېره د ماشومانو د شيرۍ په برخه کې د ده جرأت د ستاينې وړ دی که په (فولکلوري ګلونه) کې ځای په ځای خودرويه او وحشي ګلونه ليدل کېږي، دغه کار هم د راټولوونکي په کريډټ کې حسابېږي چې بې له توپيره يې د باغ او سارا فولکلوري - ګلونه راټول کړي دي او رنګينه ګېډۍ يې ترې جوړه کړې ده. د فولکلور ګلونه معيار غواړي او بايد خدمت يې وشي که نه د دې امکان لري نه دی چې دغسې ګلونه دې ډېر ژر مړاوي او په فنا محکوم شي. د کتاب چاپولو سره موافقه لرم او چاپ يې ضروري هم ګڼم.



# د ښاغلي زلمي هیوادمل نظریه

## د ژبو او ادبیاتو د انستیتوت رئیس صاحب!

د ښاغلي نمل علي محمد منګل (فولکلوري ګلونه) نوی کتاب چې تاسې د نظر یې له پاره ما ته را سپارلی ؤ نو ما ټول کتاب مې ولوست. کتاب په لوی سر کې څلور عمده برخې لري چې په لومړۍ برخه کې یې په پښتني متلونو، په دوهمه برخه کې په قوسي نرخونو په دریمه برخه کې په لوبو او په څلرمه برخه کې یې د ماشومانو په فولکلوري خبرې شوې دي.

څلورم

۱ـ پښتني پسول په برخه کې ښاغلي ليکوال د پښتني ګانو مختلف ډولونه په مفصل ډول معرفي کړي دي او د پښتو په اولسي ادب کې يې هم ددغو ګانو انعکاس ته نغوته کړې ده، دغه کار په خپله برخه کې نوی، او تراوسه له څو محدود ومقالو پرته په دې باب نوره نه دي ليکل شوي.

۲ـ د منګلو د سيمې کوم قومي نرخونه چې په دې کتاب کې راوړل شوي، په دې برخه کې د نورو تېروکارونو د تکميل حيثيت لري، او زموږ د اولسي قوانينو د لړۍ يوه ورکه کړۍ بشپړوي.

۳ـ د کتاب دريمه برخه د منګلو د سيمې معمولي لوبي را پېژني چې د مولف دغه هڅه هم د سمه ييز کلتور د راتلونکو له پلوه مهمه ده.

٤ـ دماشوما نو کومې سندرې چې ښاغلي ليکوال د کتاب په پای کې را وړي، دغه سندرې هم زما د معلوماتو له مخې د ماشوما نو سندرو له نوروچا پې مجموعو څخه بېلې، شکل او فورم يې نوی دی.

په همدی اساس په دا ډسره ويلای شم چې د دی کتاب محتويات زموږ د ټول اولسي ادب او ويا ړلي کلتور د يرې ورکې برخې له امحا او له منځه تللو څخه ژغوري، نو ځکه ئې چاپ له هره پلوه ګټور او ضروري دی.



پښتگرم

# دا ګلونه

## لا به ډېر ګلونه وا شي په دا باغ کې

ښاغلي علي محمد منګل د اولسي پانګې لوی ګلزار ته ګلونه ګلونه پخوا ور د ننه شوي او له دې ګلزار نه يې ډېرې ګېډۍ د اولسي پانګو علاقمندانو ته وړاندې کړې، ده دې کار ته په مينه لېچې غښتلې او په نه ستړي کېدونکي هاند او هڅه يې تل د اولسي پانګې لويې او ورې ګېډۍ جوړې کړې دي.

شپږم

د ښاغلي منګل زیات شمیر فولکلوري مقالې دهیواد په بېلا بېلو خپرونو کې راغلې او تردې مجموعې وړاندې یې: فولکلوري ګیډۍ، او لسي پوهه او دما شو مانو فولکلور(*) مجموعې وار په وار نشر شوې او داو لسې پانګو دعلا قمندانو تنده یې ماته کړې ده.

پر فولکلور باندې د کار کولو ساحه په دوولویو برخو ویشله شوې ده چې یو یې فولکلور راټولول او بل یې فولکلورڅېړل دي یا په بل عبارت یوه یې د مواد او بله یې د تیورۍ سیمه ده. مواد د تیورۍ له پاره داسې حیثیت لري لکه خښتې او نوره مساله چې د یوې ودانۍ په جوړولو کې مؤثر دي؛ که د یوې ودانۍ له پاره هر څومره ښه نقشه طرح شوې وي خو چې خښتې او مساله ورته تیاره نشي د تل له پاره د کاغذ پر مخ پاتې کېږي.

د منګل آثار د خښتو او مسالې له پلوه ډېر غني دي او د پښتني فولکلور له یوې داسې سیمې نه بې مواد راغونډ کړي چې تر دې وړاندې لاس ناو هلې پاتې وه، دامواد د پښتني فولکلور په مجموعي څېړنه کې یوه ساحه ور زیاتوي او د فولکلورڅېړنې دما نۍ له پاره لومړی لاس اصیله مساله برا- بروي.

تردې چې را تېر شو په دې اثر کې د منګلو د فولکلور له څلورو لویو او سره بېلو موضوعګانو سره مخ کېږو چې لومړی موضوع یې پسول او ګانې، دوهمه موضوع یې نرخونه او قو مي لیارې، دریمه موضوع یې لوبې او څلورمه موضوع یې د ماشومانو فولکلور دی. دا موضوعګانې په لومړي نظر سره بېخي بېلې ښکاري او لازمه وه چې هره یوه په بېله - بېله رساله کې راغلې وای همدا راز په فولکلوري- ګیډۍ او او لسي پوهه کې هم دا کار شوی، کېدای شوای

(*) دار ساله دزیری د ۱۳۵۷ کال په کالنۍ کې خپره شوې ده.

چې ښاغلي ليکوال د يوه قبلي پروګرام له مخې په هره موضوع مواد راغونډولای او بيا يې په يوه مجموعه کې خوندي کولای او خپرولای نو يوه موضوع به يې په څو رسالو کې نه وېشله کېدله او داسې به نه پېښېدله چې هم په فولکلوري کېلوکې نرخونه خپريدل او هم په (فولکلوري ګلونه) کې او يا هم داواسې پوهې او دې مجموعې سره ورته موضوعات به نه سره بېلېدل. په هرحال بيا هم موږ مخکې وياسې دي چې دښاغلي منګل آثار د فولکلوري خښتو او مسالې حيثيت لري دا خښتې نه په ترتيب وي يا يې ترتيبه د ماڼۍ د جوړوالو له پاره اساسي کار ورکوي او دا نو بيا د فولکلور څېړونکو کار دی چې څنګه يې څنګ په څنګ سره ږدي او څه ډول د خپلې ودانۍ په جوړولو کې کارترې اخلي ؟

د (فولکلوري ګلونه) لومړی موضوع چې پسول او ګانه پکې معرفي شوي يوه ډيره مهمه موضوع ده . پسول او ګانه لکه څومره چې لرغوني دي او اوږد تاريخ لري هماغومره په پښتنو ښځمنو کې دار ښت او اهميت وړ دي او لاتر اوسه يې په ډيره مينه ساتلي دي ، د پښتنو ښځمنو او ماشومانو له خوا استعماليدونکې ګانې او پسولونه ډير زيات دي خو په دې اثر کې د فولکلوري موادو دراغونډونې د سيمې په نظر کې نيولو سره يوازې د منګلو دښځمنو پسولونه معرفي شوي او لازمه وه چې ښاغلي ليکوال هغه اختصاصي ګڼې هم ښودلې وای چې مينځې يې د خپلو ماشومانو له پاره په کاروي ، دغا مو په بېلابېلو برخو يې ور ګنډي او پرې ځوي يې خو د ليکوال نه ستړې کېدونکې هڅې سړی ډاډه کوي چې په خپلو راتلونکو ټولونو کې به د پسول دالوری هم نظر کې ولري.

دوهمه موضوع يې هم چې دمنګلو نرخونه او لياري معرفي کوي ډيره مهمه او د پښتنو حياتي موضوع ده ځکه همدا نرخونه دي دوی

د ژوند کولو اساسي او اولسي قوانین دي چې په هغه دې (لارو) دوی ته د ژوند کړی او د دوی حقوق خوندي ساتي، د پښتنو ترڅو نه په مجموعي توګه دومره ارزښتمن او پاخه دي چې یو وخت به د نړۍ یوالو حقوقي تیوریو په څېړنه کې د توجه او ارزښت ور مقام ولري.

لوبې چې د مجموعې دریمه موضوع ده یا هم یوه ویړه او لرغونې موضوع ده چې د بشري تاریخ له لرغونو موضوعاتو څخه ګڼله کېږي.

د پښتني سیمو ماشومان او ښځې بېلابېلې ګټورې او په زړه پورې لوبې لري چې زیاتې لوبې یې لوړ سپورتي او صحي ارزښت درلودونکې دي او د فولکلوري ګلونه دا برخه د منګلو سیمې له لوبو څخه پرده پورته کړي او موږ یې ننداري ته ور بولي.

د کتاب وروستۍ موضوع د ماشومانو په فولکلور پورې اړه لري د ماشومانو فولکلور ډېر ویړ او پراخ دی خو دا یې یوه وړه برخه ده او خصوصاً د شیري (شاعري) زیاتې نمونې یې د ماشومانو له سویې ډېرې لږې دي او باید د لویانو په ادب کې یې راوړو.

له دې ټولو سره سره د ښاغلي منګل «فولکلوري ګلونه» نه یوازې دا چې د فولکلور څېړونکو له پاره مواد برابروي بلکه د وګړپوهنې، ګړدود پوهنې او نورو پوهنو له پاره هم ماړه او غني مواد لري چې د داسې څېړنو په عملي ډګر کې به یې ارزښت به ترارا برسېره شي او دا کار به یې د «سنګ میل» حیثیت پیدا کړي.

خدای یې دې پر ژوند او قلم برکت کېږدي.

**په مینه**
**حبیب الله رفیع**

# د مهربان خدای په نامه

د لوی او بښونکی خدای له دربار څخه مې خواست کاوه چې «فولکلوري ګلونه» ولیکم .

لوی څښتن ته ډیر ډیر شکر دی چې د «فولکلوري ګلونه» لیکلو توفیق یې را کړ .

د فولکلوریکو روایاتو دغه خواره واره ګلونه د ګران هیواد د کلتوري ارزښتونو په رڼا کې ښاغلو لوستونکوته د توان په اندازه په سینه وړاندې کوم ، هیله لرم چې دا ګلونه به ددوی سره د پکتیا د یوې سیمې (منګلو) د فولکلوریکو موادو په لړ کې څه مرسته وکړي .

علی محمد منګل

کابل ـ انصاری واټ

۱۳۵۸/۷/۱۰

# سریزه

دعلمي او تیوریکي څېړنو له مخې چې د فولکلور په برخه کې د پوهانو او عالمانو له خوا نه تر سره شوې، د هغو نه دا جوړېږي چې په عمومي توګه فولکلور د وګړو او اولسونو د ژوند بېلا بېل او ځانګړي اړخونه تر څېړنې لاندې نیسي او په خصوصي توګه سره فولکلور د ټولو اولسونو د کلتور له هغو ډولونو او عنعناتو څخه دی چې ثبت شوي نه وي او په شفاهي ډول سره په هره ټولنه کې شته او موجودیت لري .

**یو و لسم**

په بشري ټولنو کې د یوه کلتور هغه سلوکي اړخونه چې ثبت شوي وي دا په حقیقت کې هغه کلتوري میراث دی چې د خلکو د تمدن اړی نه شمېرل کېږي، کوم سلوکي اړخونه چې ثبت نه وي د ولسي اصیلو موادو په حیث یې پېژني او په زیاته مینه یې د تمدن د یوې کړۍ په توګه ثبتوي، پوهان وایي: موږ د فولکلور د څېړ-نې په واسطه د یوې ټولنې له مادي او معنوي ژوند څخه خبرېدای شو چې د یوه ماخذ او مضمون په څېر له موږ سره ډېره مرسته کوي.

څومره چې جوته ده په نړۍ کې د فولکلور څېړنه او مطالعه ځانته ځانګړې لارې او میتودونه لري او له ډېرې ځنډنۍ زمانې نه د فولکلور مطالعه په اروپا او اسیا کې پیل شوې او خورا اوږد تاریخ لري، خو په امریکا کې د فولکلور څېړنه نسبتاً نوې ده.

په اولو او لومړنیو وختونو کې خلکو فولکلوري څېړنې ته زیاته توجه نه درلوده او دې مضمون ته یې په سرسري نظر کتل، دا ځکه دوی ویل چې فولکلور په هغو شیانو پورې اړه لري چې د وګړو د کلتور سره اړیکه نه لري.

د فولکلور (*) د کلمې څېړنه په لومړي سر کې W.J. Thoms انګلیسي پوه او عالم استعمال کړې ده، تامس د فولکلور کلمه لاتین د دغې کلمې Popular Antiguities (د فکر پایښت او دوام) په عوض کې چې د خلکو د ځنډنۍ کلتور او دنن ورځې د سیمه ییزو او کلیوالي پوړیو په دودو-نو او عنعنو کې پاتې شوې (فولکلور اصطلاح) را اوړې ده (۱).
د فولکلور پوهان وایي چې دا اصطلاح دې یوازې په سیمو او کلیوالو

---

(*) په فولکلور کې رسوم عقاید، خرافات، رواجونه، ولسي افسانې، ولسي سندرې، ولسي موسیقي، نڅاوې، متلونه او د عادي انسان د ورځنۍ ژوند ټول مشاهدات مطالعه او څېړل کېږي، (د زیاتو معلوماتو د پاره وګورئ فولکلوري مرغلرې د زلمي هېوادمل سریزه).

(۱) د وندا س آلن، دي سټډي آف فولکلور، پرېنټیک ـ هال انګلوو ډ کلایفس آن. چ، ۱۹۶۵.

او دغو په کړو وړو پورې مربوط و نه گڼل شي، خو سره له دې دا اصطلاح د مفهوم له مخې د همدغه شان کلتور سره اړیکه پیدا کوي. د دې تکې پر بناء ویل کیږي چې فولکلور د کلتور هغه اړخ دی چې د ولس او وگړو دودونه او عنعنات په شفاهي ډول سره د ژبې پواسطه د خلکو تر منځ لیږدول (انتقال) کیږي. دا هم باید وویل شي چې د فولکلور پوهان د دغو دودونو او رواجونو سره چې د لیک پواسطه اخبارونو، مجلو او نورو خپرونو کې ثبت شوي وي چندان مینه نه ښکاره کوي.

امریکایي فولکلور پوهان کله کله د فولکلور د کلمې پرځای د فکلور ( Faklor ) کلمه استعمالوي، د دا اصطلاح پروفیسور ریچارډ دورسن په ۱۹۵۰ کال کې منځ ته راوړې ده. د پروفیسور دورسن مقصد له دې اصطلاح څخه دا و چې په دې سره به د یوه معین او تړاکاي کلتور اصلي او محلي دودونه او رواجونه تشخیص او وپیژندل شي، د دې له مخې به یو فولکلوریست و کولای شي چې د فولکلور د مضمون د څیړنې په وخت کې فولکلوري مواد په اساني سره جوت کړي.

فولکلوریستان او پوهان د فولکلور د کلمې اصطلاح په بیلو بیلو ماناګانو او مفهومونو سره استعمالوي: ځینې کسان Folk وگړي (خلك) او Lor ادبیات او فولکلور د خلکو ادبیات بولي. ځینې بیا فولکلور د کوچنیو هلکانو او جنکیو ادبیات گڼي، داشان ځینې خلك بیا فولکلور دو بیلو او وریدلو په مفهوم سره را اخلي، خو کله چې موږ د فولکلور اصطلاح په علمي موسساتو کې استعمالوو مقصد او هدف مو د خلکو د شفاهي رواجونو او کړو وړو څخه دی چې د ژبې پواسطه د تولنې د غړو تر منځ یوه او بل ته انتقال لیږي (۱).

---

(۱) بران واند، دي سټډي اف امریکن فولکلور، ډبلیو. نارتن کمپنۍ، نویارك، ۱۹۶۸.

**دیارلسم**

ددې تګې پر بنا د فولکلور ساحه ډېره ارته او پراخه ده چې په اوسني عصر کې يې د مواد و ترتيب او تنظيم کول په علمي توګه خوراګران او مشکل کار دی ، خو د علمي ميتودونو په واسطه کولای شو چې د فولکلور پراخه او ارته ساحه تر خپل کنترول لاندې راولو او د هغې مواد په علمي توګه ترتيب او تنظيم کړو (۱) .

د فولکلور د ميتود د وړ چې په انکشاف او پراختيا کې سو يلهانې او اېرلينډې پوهانو د ستاينې وړ خدمتونه کړي، که څه هم د دغه ميتود داسې طبقه بندي نه شو کولای چې ټولې علمي موسسې تر خپلې اغيزې لاندې راولي. هدف ارنګه په علمي موسسو کې د دې مفهوم په هکله د نظريوز يات توپيرونه ، موجود دي د دې علت يو دليل دادی چې د فولکلور د څېړنې او مطالعې لپاره ډول ډول ميتودونه او د ريسرچ ځانګړې لارې او طريقې منځ ته راغلې دي (۲) ، که څه هم د څېړنې د ميتود په برخه کې لا تر او سه د ساينس پوهانو تر منځ اختلاف ليدل کېږي خو په عمل کې د يو مصنفين پر دريو اساسي کټه ګور- يو باندې موافقه کوي :

۱- تاريخي ميتود چې له تېرې زمانې سره علاقه لري او غواړي چې د ماضي په روښانولو سره حال او راتلونکی زمانه وپېژندل شي .

۲- سروې چې او سني حالات تر څېړنې لاندې نيسي او د روانو پېښو ماهيت او وضعيت څرګندوي .

۳- تجربي ميتود چې غواړي د پېښو او پديدو تر منځ اساسي روابط کشف کړي او په دې وسيله د پېښو د وقوع په باره کې پېشګويي وکولای شي او يا يې کنترول کړي . د ريسرچ له دغو تخنيکو- نو څخه تجربي ميتود په طبيعي پوهنو کې زيات استعمال لري .

---

(۱) د څېړندوی محمد صديق روهي مقاله ، فولکلور مجله اومه ګڼه ، ۱۳۵۲ کال .

(۲) د پوهنيار محمد علم مياه بار له هغو يادا شتو نو څخه چې ماته يې د استفادې له پاره راکړي وو .

**څوارلسم**

فولکلور له تاریخي میتود څخه استفاده کولای شي، مګر په عمومي ډول فولکلوري څېړنې له سروې څخه زیاته استفاده کوي، سروې معمولاً جاري وضعه تشریح کوي، سروې له تاریخي میتود څخه دا توپیر لري چې تاریخي میتود زیاتره تېرو ختو ته رجوع کوي او ماضي حالات او پېښې څېړي، سروې له تجربي میتود سره هم توپیر لري (۱).

د موجود یت له مخې فولکلور په درېو ډولو دی:

## الف - شفاهي فولکلور :

د شفاهي فولکلور څېړنه نن د جهان په علمي موسسو کې ډېره رواج ده، او دغه ډول فولکلور د ساده څخه په پېچلو مواد و سره طبقه بندي کېږي، موږ دلته د دغه ډول فولکلور یوازې د بېلو-بېلو کټګوریو نومونه اخلو لکه سيمه ییزې وینا ګانې، سیمه ییز نومونه، متلونه، سندرې (انګ ،)، پامونه (سرو کي) معماګانې، کیسې، سیمه ییز آهنګونه، دودونه ولسي پرېکړې او قوانین (نرخونه)، د مشرانو احترام، د کشرانو حق او حقوق ته اړنیزې چارې لکه پګړه (اشر) بدرګه، نکلونه او نور یا دولی شو.

## ب - نیم شفاهي فولکلور :

د فولکلور په دې برخه کې د فولکلور شفاهي او هم غیر شفاهي عناصر شامل دي لکه خرافاتي عقیدې (کړکې، پال نیونه، ستوري پېژندنه ...)، سیمه ییزې نڅاګانې او ګېډا، مجلې او سیمه ییزې لوبې او نور.

## ج - غیر شفاهي فولکلور :

د فولکلور دا برخه د سیمه ییزو هنرونو، سیمه ییز موزیک سیمه ییز خوراک، سیمه ییز ادب او سیمه ییزو اشارو څخه بحث کوي.

---

(۱) د څېړندوی محمد صدیق روهي مقاله، فولکلور مجله لومړۍ ګڼه، ۱۳۵۲ کال

دا باید وویل شي چې د فولکلور دادرې کټګورۍ په حقیقت کې د یوې او بلې سره ډیرې نږدې اړیکې لري او ترمنځ یې بشپړ بېلتون او توپیر نه کېږي. د فولکلور د علمي څېړنې او مطالعې له پاره همدغه ویش د پوهانو د قناعت وړ دی. د مثال په ډول که چیرې موږ یو سندرغاړی په یوه ګروپ او د موسیقۍ آلات په بل ګروپ (کټګورۍ)، سیمه ییزې نڅاګانې او د هغو د لوبغاړیو د بدن حرکت په بله ډله او ګروپ کې سره ونیسو نو د فولکلور د څېړنې له پاره کوم زیان او مشکلات نه پېښوي. همدا شان د یوې عنعنې د علمي څېړنې په وخت کې موږ دا ټول شیان لیدلی شو.

ددې طبقه بندۍ او ګروپي تنظیم څخه آرهدف او مقصد دا دی چې د فولکلوریکو موادو معلوماتو راټولول، ترتیب او تنظیم به په سیستماتیک ډول سره تحلیل او تجزیه شي. د فولکلور معلومات باید د یوه ټاکلي او معین کلتور په قرینه کې راغونډ کړل شي، داځکه چې د یوه فولکلور په افاده کولو کې ځانګړي مهارتونه په کار اچول کېږي، د مثال په ډول د یوه سیمه ییز نڅل او بدلې په اچولو او ویلو کې ځانګړې ژبه او دغړیو حرکتونه لکه د سترګو حرکت، د لاسونو ښورول او داوریدونکو عکس العملونه، داچوونکی غږ او د هغه ځینې نور خاص کرېکټرونه او پېښې، په اوریدونکو د هغه اغیزه او نور په نظر کې نیول کیږي (۱). په دې برخه کې پښتانه ډېر په زړه پورې او اسې نکلونه (*) او بدلې لري چې اچوونکي یې د مجلسیانو په نوم

---

(۱) د زیاتو معلوماتو له پاره و ګورۍ د څېړنوال دوست د «پښتو داولسي ادب لارې» کتاب.

(*) په ولسي نکلونو او بدلو کې د آدم درخانۍ، خویشکیار، مومین شرینۍ، موسی خان ګل مکۍ، میروګی ترینه (شاترینه) فتح خان او رابیا او داسې نور د پښتنو په ډیرو او یجرو کې هره شپه اچول کیږي (*)

یا د یږي ، د کلیو په ویجړو او بانډو کې مجلسیان دا نکلونه په خاص مهارت سره اچوي ، د هغوی حرکات په اوریدونکو او لیدونکو زیات اثر کوي .

له بلې خوا نه د فولکلور د بشپړې پیژندنې له پاره ډیر و پوهانو د فولکلور د تعریفولو په برخه کې زیاتې هڅې کړې دي ، خو د فولکلور د تعریف د جزیاتو په باره کې د فولکلور د نامتو پوهانو تر منځ د نظریو والی نه شته . د پوهانو د غه د نظر اختلاف د فولکلور د تعریف په باره کې د فولکلور د معیاري فرهنګ په یوو یشتو تعریفونو کې لیدلی شو (۱) . له دې نه پرته د فولکلور ډیر پوهان د فولکلور په لاندې پنځو خاصیتونو کې د نظر موافقه سره لري :

۱ ـ فولکلور په شفاهي ډول سره موجود دی .
۲ ـ فولکلور په عنعنوي توګه وجود لري .
۳ ـ فولکلور د نظم او نثر په بڼه سره موجود یت لري .
٤ ـ د فولکلور جوړوونکی معمولاً معلوم نه وي .
۵ ـ فولکلور د یوه کلتور د جز په حیث په هر کلتور کې شته .

د دغې هرې یوې موضوع څیړنه یوه پراخه ساحه نیسي ، خو لومړی دوهم او دریم عنصر د فولکلور د تعریف بنسټ او اساس شمیرل کیږي او نن ورځ د پوهانو د نظریو او څیړنو په لړ کې په

---

(*) د ولسي نکلونو په راټولو کې مرحوم محمد ګل نوري ډیر لوی خدمت پښتو او د پښتنو ولسي او فولکلوري منظوم او منثور ادب ته کړی دی ، د خدای بښلي نوري نوم د تل لپاره په فولکلوري محافلو کې ژوندی او د فولکلور د مینانو تر منځ په درنښت سره یادیږي او دده دا خدمت نه ور کیدونکی دی او په نوم یې باید دراتلونکو محافل جوړ شي .

(۱) د پوهنیار محمد علم میله بار له هغو یاداښتونو څخه چې ما ته یې د استفادې له پاره را کړي وو .

ښکاره سره جوت شوي دي . پنځم جزيې د کلتور د خپرنې په صورت کې څرګندیدلی شي .

## ۱ ـ فولکلور شفاهي دی :

کله چې وايو : فولکلور په شفاهي ډول سره وجود لری نو ددې جملې آر هدف دادی چې فولکلور د ژبې په واسطه په يوه توانه کې ديوه سړی نه بل سړی ته او د يوه نسل نه بل نسل ته دويلو اواوريدلو په واسطه انتقال لیږی . دا باید په ښکاره سره جوته شی چې ژبه (*) د فولکلور دلیږدولو او انتقال دپاره خورا مهمه وسیله ده .

د فولکلور پوهان عقیده لری چې فولکلور يو شمیر موضوعات داوریدو په سیستم پورې اړه لری . دا ځکه چې فولکلور د آواز (غږ) په واسطه یا دموسیقی د آلاتو په واسطه زموږ غوږ ته رارسیږی کله چې د شفاهی انتقال اولیږد په باره کې خبرې اترې کوو ، ایلای شو چې ډیر زیات موضوعات په هغه کې شاملیږی دمثال په ډول د يوې محلی اوسیدونکي لوبې تقلید کول ، يوه کوته او خونه جوړول ، د يوه رسم او رواج ښودل اوپه ګوته

---

(*) ژبه د يو لړ هغو ويېزو غږونو څخه منظم جوړ شوی سیستم دی چې دغږیز جهاز په واسطه تولید او په غوږو سره اوریدل کیږی . نه دې غږيز سیستم نه انسانان د يو او بل د پوهولو او را پوهولو څخه کار اخلی اوپه مرسته يې دخپل چاپیریال اومحیط پیښې او کړه وړه په بریا لی بڼه سره تر سره کوی . ژبه په حقیقت کې دانسانانو ترمنځ هغه غږیز منظم او سیستماتیک سیستم دی چې هره اجتماعی ټولنه يې په خپل منځ کې استعمالوی ، لنډه داچې ژبه دانسانانو ترمنځ د هغې لارې څخه عبارت دی چې د هغې په وسیله یا کار اچولو سره خپلې مفکورې احساسات ، غوښتنې ، خواهشات ، کار، تولید او نورې پوهې پرې بشپړوي او دافهام تفهیم غوره وسیله ګڼل کیږی .

کول په شفاهي ډول سره تر سره کیږي (۱) . ددې خبرې له پاره لکه چې دمخه اشاره وشوه په پښتني کلیو او بانډو (منګلو) کې د آدم او درخانۍ، بلو او میرو بدله په حجرو او دیرو کې د آدم-خان د بدلې په نوم په شفاهي ډول سره په ډېر خوندور ډول اچول کیږي او په اوریدونکو زیات اثر کوي .

**۲ ـ فولکلور عنعنوي بڼه لري:** فولکلور د دوو نقطو له نظره عنعنوي او رواجي دی، لومړی دا چې فولکلور په تکرار او نسبتاً معین شکل سره موجود دی، دویم فولکلور نسبت په یوه معین معیار سره د یوه سړي څخه بل ته او د یوه نسل نه بل ته انتقال کوي، په دې برخه کې ځینې شکلونه او عنعنوي خواص د فولکلو-ر د تشخیص او پیژندلو له پاره خورا مرسته کوي . د مثال په ډول یو لنډ نکل چې د هغه عناصر (سړي) دي په نکل کې هم رول لوبوي، د نکل د پیښیدو ځای، د نکل ډول، د نکل اسا-سي هدف او د ژبې وضعیت په نکل کې خو را مهم ګڼل کیږي (۲)

د نکل عناصر په بیلو بیلو بڼو سره موجود دي چې څیړنه یې دلته مورد نه لري، خو د لیلی او مجنون نکل په دې برخه کې د موضوع د روښانه کولو له پاره مرسته کوي چې دد وونه تر د یو عناصرو پورې د نکل عمومي خاصیت په کې څرګند دی که غور وشي دا ګډ او مشترك خاصیت د فولکلور د تعریف د پاره مرسته کوي، دا په دې مفهوم چې محاوره د خلکو ترمنځ یو شفاهي سلوك دی نه عنعنوي، دا خبره هم د یادونې وړ ده چې ټولې محاورې په یوه ټولنه کې په معین شکل او معیار سره په تکراري ډول نه انتقالیږي په لنډ ډول سره دا باید ووایو

---

(۱) بران واند، دي سټډي اف امریکن فوکلور، ډبلیو نارتن کمپنی، نیویارك، ۱۹۶۸ .

(۲) د پوهنیار محمد علم میله پارله یادداشتونو څخه چې د استفادې له پاره یې را کړي وو .

چې د یوه کلتور یواز ې هغه اړخ نه چې شفاهي او عنعنوي سلوك و لري د یوې ټولنې د فولکلور په لړ کې راتلی شي.

### ۳ ـ فولکلور د نظم او نثر په بڼه وجود لري :

پوهان وايي چې د ولسي پوهې لمن ډېره اوږده او لویه ده د هغې ځېرل غوره کار دی د نظم او نثر برخه په هره ټولنه کې شته، دا د فولکلور په زړه پورې برخه ده دا ځکه چې فولکلور هم د نظم په شکل او هم د نثر په ډول موجود دی منثور فولکلور (ولسي ادب، ولسي پوهه) په یوه ټولنه کې د هغې ټولنې هغه کیسې (متلونه، نکلونه) او نور منثور مواد دي چې په کې رواج لري .

منظوم فولکلور یې ولسي سندرې دي چې په بېلو بېلو قسمونو او ژانرونو سره لیدل کېږي سر بېره پر دغو دو برخو یو ډول منظوم وزمه فولکلوریك ادب هم شته چې په پښتو کې یې ښه مثال کیسې او متلونه دي :

**کسی (کیسې) :**

کسی بسی اووه کیسی سې د ربا ندې — سی بسی اووه سنی د ربا ندې
وه توري مرغۍ — په او بو وهي بوزۍ
ته ډینګل ډینګل شه خورې — که د لمرو چه ډوډه
توره توره تله — دد وو تر منځ و لګېده
نه تې زرې نه تې — خلور یې کدر بوزدوه یې چې
(وګوري ء فولکلوري ګېډۍ)

**متلونه :**

نغن د سیچنې — زای (زوی) دخچنې
سل روپۍ پورکه — اختر شپه په کورکه
سل دې ومره — یودې مه مره
توره میروګۍ کې — غېږ دې آدم خان ځی

### ۴ ـ د فولکلور جوړوونکي معمولاً معلوم نه وي :

تر اوسه پورې د فولکلوریکو موادو په باره کې چې کله پیدا شوي چا ویلي؟ په کوم قوم او ملت پورې تړلي؟ او ایا مړ ـ

ی ویونکی یې څوك دي؟ او دویلو نیته یې کومه ده؟ جوت او ښکاره مواد په لاس کې نه شته ترڅو لو ښه سند په دې باره کې خپله د انسان پيدا ینبت او د هغه خلاق قدرت دی.

کله چې انسان د خپل خلاق قدرت په اثر ژوند کې تغییر راوست ور سره سم یې د خپلې پوهې په باره کې هم بدلون را څرګند کړ. په هر صورت، سره له دې هم د فولکلو ریکو موادو (نکلونه، سندرې، متلونه، کیسې، کیسو، ترانو ...) د تاریخ په باره کې په نسبی ډول سره باید داسې ووایو چې د دغو موادو نېټه ماقبل التاریخ ته رسیږي، دا په دې مفهوم: کله چې دا نسان لومړنی او ابتدایی توانې د نړۍ پر مخ پيدا شوې نو د غم او خوشالی د اظهار ولپاره یې له ډول ډول سندرو، کیسو او نورو وسایلو نه کار واخیست، خو سره له دې داسې کومه فولکلوریکه فورمه نه لیدل کیږي چې دا موضوع پوره روښانه او جوته کړي.

فولکلوریستان د دغو موضوعاتو د روښانه کولو ښه نښه په خپله انسان بولي.

دا چې د لومړیو بنیادمانو څخه موږ ته کوم داسې څه په دغه برخه کې ښکاره نه دي راپاتې، نو په دې باره کې زیاته خبره نه کول زیاتی هڅې ته اړه لري کله چې د تاریخ او لیك دوره راورسید نو د انسانانو په ژوند کې ښکاره بدلون راغی او د لیك په واسطه سره د انسانانو د ورځنی فعالیت او د هغه د کړو وړو مواد ثبت شول، له دې وخت نه د نړۍ پر مخ بانديې د فولکلور خبرې نه په لویدیځ او ختیځ کې د تولنو ترمنځ په اروپا، آسیا، امریکا او نورو برخو کې پیل شوه نن ورځ د فولکلور موضوع په ډیرو هیوادونو کې د یوه مضمون په حیث په تعلیمی نصاب کې شامله او خاصه توجه ورته شوې ده، د دغې لنډې یادونې په پای کې وایو:

د خاورینې نړۍ په سر د بشر د ژوندانه په اوږده تاریخ کې د بیلا بیلو قومونو او ملتونو د کلتور په خبرو نه، پیژندنه او معرفی کې فولکلوري او ولسی مسایلو عالمانو او څیړو نکو ته په

زړه پورې علمي مواد چې د انسانانو د ژوند سره مخامخ اړه لري برابر وي .

دا ځکه چې فولکلور د انسانانو له ژوند او کړو وړو څخه په ځانګړیو تاریخي دورو کې د بېلا بېلو بشري ټولنو د ژوند انه د طرز، لار و چارو، ټولنيز و مناسباتو، دود ودو، هنر، ادب، کرکو، انګیرنو او نورو مسایلو څخه چې له يوه نسل نه بل ته د بل نه بل ته پاتې بيان کوي کوم چې د انسان له تکرنه راپيدا شوي او په ټولنه کې بېرته خواره شوي دي.

له دې کبله ویلای شو چې فولکلور د ژوند انه ر وښانه آینه (هینداره) ده چې په دې آینه کې د بشر بېلا بېل کړه وړه منعکس کیږي او د څیړ نې چا پېر يال يې ډېر ارزت او پراخ دی.

اوس چې د انسانانو ژوند ترهرې اړخيزې څیړنې لاندې نیول کیږي په ټولنيزو او کلتوري برخو کې فولکلوري مسايل د پوهانو او څیړونکو له پاره غوره علمي مواد برابروي . زموږ د ګران هیواد (افغانستان) فولکلور او ولسي پوهې د نورو د فولکلور او ولسي روايا تو په څېر هم، د داخلي او خارجي پوهانو پام خپل لوري ته اړولی، خو چې په دې ټولسره افغاني اصيل فولکلور په نړیواله سويه تر مطالعې لاندې و نیول شي . د دغو څېړنو له مخې به دا فغاني فولکلور په ارزيابي سره د تاريخ په اوږد و کې د ګران هیواد د تمدن او کلتور ودې په نړيواله سويه بيان کړ ای شي، د اوجه ده چې زياتو خارجي پوهانو افغاني کلتور او فولکلور تر څېړنې لاندې نیولی دی.

د پورته خولنه وتکيو پر بنا زه تل دې ته تيرې بم چې د ګران هیواد د هرې سيمې، با نډې او کلي فولکلوري پانګه باید راټوله کړای شي، څو چې په دې وسيله د فولکلوري تیوري تحليل او علمي څېړنې له پاره پوره او زيات خام مواد را غونډ کړ ل شي . له څو کلو ر هیسې مې څه چې کور او کلي کې ابدل هغه مې په سينه د فولکلو رمينا نو ته راټول کړ ل چې « فولکلوري-

ګېډی او اولسی پوهه » ترې جوړ شول ، داخو به په خپله برخه کې پوره نېمګړې وي ، خو زما په وس همدا پوره ؤ ، د دغو موادو بشپړول د ځوانانو کار دی . دلته د خوشال بابا دا بيت را يادېږي :

همیشه به پرې ناري وي د بلبلو

داچې ساز کړ ننخوشال په ويل باغ

دا ځل مې « فولکلوري ګلونه » راغونه کړي او يوازې تشريحي بڼه لري چې د فولکلوري تيورۍ او خامو موادو له پاره به څه کار ترې واخستل شي ، په اّنه وخت کې به د دغو مواد و په اساساتو هم کار وشي ، دا تکی سپددې له پاره ياد کړ چې فولکلور دوې برخې لري : يوه په خپله (فولکلور) او بله (د فولکلور په باره کې) :

په لومړۍ برخه کې د هرډول فولکلوري مواد و راټول او ثبتونه ده چې تشريحي بڼه لري . دوهمه برخه د فولکلور اساسات دي چې (تيوريکی اړخ) ورته وايه شی .

موږ داوار د پښتنی فولکلور د لومړۍ برخې له غنی او بډيې ورشونه « فولکلوري ګلونه » راغونه کړي ، لکه څنګه چې ښايی په دغه برخه کې پوره او بشپړ موادلا نهدي راټول شوي پهدې توګه د هيواد په ګوټ ګوټ کې د غې ملی او فرهنګی لويې پانګې ته تر اوسه لاژور لاس نه دی وروړل شوی .

په پای کې دا فغان ځوان نسل نه غواړم چې د افغانی تولنې د اصيل کلتور د پيژندنې په اړخ کې فولکلوري مسايلو ته لاپراخوالی پسې ور کړي ، څو چې په دې ډول د افغان و لس د فولکلور مينانو ته په زړه پورې غوره علمی مواد برابر شی ، البته دادهر وطنپرست ځوان ملی او مقدسه وظيفه ده چې د ګران

هیواد (افغانستان) د دغې فرهنگی پانگې په پېژندنه کې فعاله ونډه واخلی .

باغ د گلو به سمسور وي مور به نه یو

د بابلو به پرې شور وي مور به نه یو

په مینه .

علی محمد منگل .

کابل - انصاري واټ - گلوله پښته

۱۳۵۸/۱۱/۲۰



څلرویشتم

د پسا له صفت یې شی د رنګ یې، نه شی
څوک چې پوري په بدرنګه ناوې پسول کا

(خوشال خټک)

## د پسول کلتوري ارزښت :

پسول زموږ په ګران هېواد کې له ډیرې څنډنې او پخوانۍ زمانې را هیسې د کلتوري ژوند یوه برخه ده او تر اوسه پورې د ګران هېواد په ګوټ ګوټ کې د بیلو بیلو سلیقو نو د خلکو په منځ کې په زیاته مینه سره رواج او استعمال لري...

ګاڼه په پښتنی ټولنه کې تر نورو لا زیاته د قدر وړ او په تیره د پیغلو، ښځو اوزا و یو سره یې لیوالتیا او مینه ډېره زیاته ده ، پښتنې ښځې د ګاڼې بیل بیل ډولونه چې زیاته ښکلا او








۲۵

د ښځینې گاڼې ځانگړي ډولونه

ښا یست لري د ځان دډولي کولو او سینګارد پاره چې لوړه بیه لري پر ځان کوي ۰ګانه (*) د وجود په بېلو بېلو برخو با ندې ښځې د ښکلا او ډولې کېدوله پاره په زیاته سینه سره پورې کوي او پرې وېا ړي .

پسول د نړۍ پر مخ په بېلو بېلو هیواد و نو کې له لوړ و قیمت ارونکي فلزاتو په تېره له سرو او سپینو زرو نه په مختلفو رنګو نو سره جوړ یږي، له دې امله ګانه اقتصادي ارزښت هم لري، دا په دې مفهوم چې پسول په حقیقت کې د یوې زیاتې اسعاري ذخیرې او پانګې په توګه د یوې کورنۍ شتمنې خوندي ساتي ۰ سر بېره پر دې پسول د نارینه او ښځې د ښو هیلو سره برابر ردي . دا ځکه چې نارینه د خپلې ښځې په ښکلا او ښایست سره د خوشالۍ او خوښۍ احساس کوي ، په دې توګه سره ښځې هم د خپل ځان په سینګارولو سره د ښایښت له نعمت څخه لا ښه ګټه اخستلای شي . په دې ډول سره وینو چې زموږ په کلتور کې په تېره پښتني کلتو ر کې پسول او ړ مقام او ارزښت لري او په دې برخه کې د صنعت او فن تکامل ډیر ګړندی پر مخ تللی د ی ۰

د ګانې او پسو ل ډولو نه او ظرافت ، دا شان د مو اد و ارزښت توول دا څرګندوي چې د پسو ل ریښې ډیرې لرغو نې د ي ، له بلې خوا د پسو ل په عمومي ډولو نو کې زیات یو والی او توحید هم شته د مثال په ډول و ښی او باوو ګان نه یوازې په پښتني سیمو کې سره ورته ښه لري بلکې له هندي باوو ګانو سره هم یو شان بر یښي ۰

---

(*) تر لوړ کړ کی مې سر و ر یبت کی
د ګانې په پړک مې رڼا کړل وطنو نه
ګا نیه په تـو ل سر ه پـو ر ه کیـږي
زه د ګانې تر توول د رنده یار ته ورځمه

# ششت

د پښتنې پسول په لړ کې داګانه ځانګړه جوړښت لري. په عمومي ډول سره یې ساده شاشتو نه او بېر شاشتو نه مشهور دي ساده شاشت ته یوازې د غولۍ د پاسه ساده رنګینه غمۍ وراچول کیږي، بېر شاشت ته سربېره پردې چې غولۍ ته یې رنګینه غمۍ وراچول کیږي (د دواړو ډولو نو په غولۍ باندې رنګینه غمۍ ایښودل کیږي) خلاصې یې پرې لري او ځای ځای د غوپر و په منځ کې ډېر کوچنۍ غمۍ په خاص هنري ډول سره ور باندې ایښودل کیږي، د شاشت شکل ته د غمیو د غه ځګوالی او تېتوالی د خلاصو په برخه کې بېروالی ورکوي، له دې کبله یې بېر شاشت بولي.

د دغې پښتنې ګانې نوم او س په کلیو او باندو په تېره منګلو کې په نادر ډول سره استعمال کیږي، ځکه دود او رواج یې په ولس کې لږ شوی دی، ځکه یې د نوم او پېژندنې سره اشنایي کمه ده. د یرش او خلویښت کاله د مخه دې پښتنې ګانې د کلیو او باندو د ښځو منځ کې په مینه سره رواج درلود،



ششت دګوتو ړوپچه د ټنلهچې
ځنځیران دجلکۍ لا ښایسته کړینه

بنګړي دې وباسه لېچو
دمینې جنګ دې خالي کېږي مړوندونه

د کلیو او بانډو هرې ښځې او پېغلې به خاصه ډاګانه د شهادت او ګاټې (غټې) ګوتې نه اچوله او بې له دې به خالي او تشې ګوتې نه ګرځېدې .

د پېرش او څلو پېښت کاله د مخه نه په بانډو او کلیو په تېره منګلو کې خولک ګرځېدلي وای نو به داوړ نه جوته شوې وه چې ښځو او پېغلو به هرو مرو د لاس د شهادت او ګاټو ګوتو کې ساده او بېر شاشتو نه اچولي وه ، اوس په نوره خواشیني او خپګان سره باید ووایو چې دا ښېګنې بایسته پسولزموږ د هیواد د بازارو نو له انتیك خرڅولو هټیو کې شته چې د بوي انتك ډوله متاع په شان د پلور او د بازاره له کلیو څخه د سوداګرو په واسطه راوړل شوي او بهرنیو هیوادو ته یې سیلا نیانو او زموږ سوداګر په اوږ قیمت سره زموږ له خاورې څخه وړاسي .

شاشتو نه د ګوتیو (ګوتې) نه غټ … لي عمي بې هم د ګوتیو له غمیو نه لوی وي ، غمي یې په عمومي ډول سره رنګینه دي چې له ښ ښو ، فیروزي ، یاقوتو ، لجبرو او عکیکو څخه ورته جوړېږي . د شاشت او ګوتیو ترمنځ توپیر دی په پلن والي کې دی (شاشتوانه اوږ ی او ګوت یې کوچنی دي) بل دا دی چې ګوت یې د لاس څلورو او ا تو ګوتو ته یې له ګاټې ګوتې اچول کېږي .

څو کاله پخوا په کلیو او بانډو کې دې ګاڼې زیات رواج درلود ، نو له دې کبله دا ګاڼې د کلیو او بانډو ښځو په ولسي ادب او سندرو (لنډیو) کې داسې په مینه سره یاده کړې ده :

**١ - سندرو کې :**

شاشت په شاشت ګوت یې په ګوته
دا سره بو ګون (١) مې په یو رته (٢) ګېلی د یاره
شاشت په شاشت ګوت یې په ګوته

(١) باهو ګان ، باووګان ، (٢) یارته

د سو رغمی ګوټ بې زورې (۳) درته کومه

په یله بېره (٤) روښه (٥) زرګره

ووړکي به ګوټ یې چوړوي چې نه (٦) شاشتونه

په تا ترو را شه زرګره

ځوانان به ګوټي جوړوي چې نه ښښتونه

ښښت په ښښت ګوټ بې په ګوته

د اباووګان مې په سیالي جولي د ینه

یور (۷) مې د بانو سوداګر (۸) دی

موته (۹) به (۱۰) روړي ډالدوښې بر شاشتونه

په یور مې هڅه نېکډوایـــه

چې ته ویاوړ (۱۱) وې ستو دې شاشت کول سوالي نه

ور تیښې (۱۲) ښې دی که جو نه (۱۳) ؟

ور تیښې بوزو (۱٤) بوزخوني (۱٥) جو نه شاشتو نه

یموامځولې مسو پـرې (۱٦)

په کایو مره یم شاشتو نه تو لی مه

شاشت مې کوړ ته او بو پو وړ

د کوناوې زییه (۱۷) ؟ ورته و نیسه ورخو نه

خـې (۱۸) په خنګ شوې رانه تېره

زه دې په ګوتو کې شاشتونه پېژنمه

---

(۳) زارۍ (٤) ادبیره (هډیره)، (د) راشه (٦) جلکی .
(۷) یار (۸) سوداګر (۹) ماته (۱۰) راوړي (۱۱) ولاړ
(۱۲) میروښې (۱۳) جلکی، پیغلې (۱٤) بوسو (۱٥) بوسخانې
(۱٦) مسافرې (۱۷) زویه (۱۸) خنګه

## ۲ - پام کی :

شا شت مې ښه جوړ کړه زرگره

زه خو پردي وطن ته خمه (۱۹) مسو پره (۲۰)

سترگې دې ښادگل غوټۍ کړې

زه خو پردي وطن ته خمه مسو پره

بانه دې پوړ ته که چې وسپړي گلونه

زه خو پردي وطن ته خمه مسه پره

شاشت مې ښه جوړ که زرگره

زه خو پردي وطن ته خمه مسو پره



---

(۱۹) خمه (۲۰) مسافره









د ګوتیو څو نمونې چې په ځانګړو
بڼو جوړې دي، ددغې ګاڼې سره دا
نوره ګاڼه چې مهر هم ئې استعمالوی
لا ښه ښکاري .

# ګوټۍ

دا ګاڼه د پښتني ښځو ډېره غوره او مشهوره برخه ده، چې د کليو او بانډو ښځې او پېغلې يې په ډېره خوښۍ او مينه سره د لاسو او اتو ګوتو ته يې له ګاټې (غټې) ګوتې اچوي، ګوټ يې په بېلو بېلو ډولو نو سره په خاص هنري او ښکلي ډول جوړ يږي، د دې ګاڼې استعمال په ولس کې په عام ډول دود دی او له نوم سره يې هر څوك آشنايي لري، ګوټ يې د شاشت نه کوچنۍ او وړې دي. د ګوټ يې غولی د شاشت له غولي نه کوچنی دی او وړوکی (واړه) غمي په کې په خاص هنري ډول سره زرګران په مينه ايږدي، ګوټ يې له سرو، سپينو او نورو فلزاتو څخه ساده او رخې لرونکې جوړيږي ځينې ګوټ يې لوړ قيمت لري او ځينې ارزانې دي، خوار او بېوزله خلك ارزانې ګوټ يې استعمالوي شتمن خلك قيمت لرونکې او د لوړو بيو ګوټ يې په مينه سره ګوتو ته اچوي، د ګوتيو غمي هم د شاشت په شان

له ښيښو، لجبرو، عکيکو، زمرو تو، فيروز ې اونور و ښخه جوړ-
يږي ، ښنګه چې په کليواو باندو وکې داپسول د ښځو په منځ کې
زيات استعمال لري نوښځې بې پهولسی ادب سندرو (لنډيو) او پا-
مونو (سروکيو، نيمکيو) کې د اسې په مينه سره ستايي :

**۱- سندروکی :**

ګوت يې سې وې پهلوس (۱) سې نه کړې
ددرنده (۲) چرګې شرم په/ تش لړسو (۳) نه

ګوت يې په ګوتو که رووزه (٤)
لوس په تندي کېږده چې و دې ز پيژ نمه

ګوت يې بنګړي د دنيو (٥) دوددی
زه دې نيستمن جانانه نه غوورم (٦) دودوزه

ګوت يې سې وې پهلوس سې نه کړې
دمازوګی په خونه ولاعلم (۷) تش لړسو نه

ګوت يې دې ګو تو کې ځلېږي
لکه سپوږمۍ دغره پهسر ځېره وهينه

ګوت يې سې شنو غميوو کې
داشنه غمی سې پهيو ری (۸) ګټلی د بنه

د اد ې ګو تيو د کو ن (۹) کولپ دی
چښتن يې نه شته په ډ هلی بازور (۱۰) به وينه

د غره پهسر نې اور بلېږي
و رورسې زرګر دی،وته (۱۱) ګوت يې جوړ و ينه

مو ته لړ نګک پهلړ نګ رو که (۱۲)
چې لړ نګک نه وي ګوت يې نه په لوسونه (۱۳)

---

(۱) لاس (۲) درمنده (۳) لاسو نـه (٤) راوزه (٥) د نيا
(٦) غوارم (۷) راغلم (۸) ياری (۹) دکان (۱۰) بازار (۱۱) ماته
(۱۲) راکه (۱۳) نه په لاس کومـه ۰

زما دلاس گوتې د سر وکه
زه به دې کورپه سر و منگولې تولو مه
ته دې گوت یې په نښکه روکه (۱)
زه په پردي وطن کې ساعت پرې تېروسه
* * *

## ۲ ـ په پامونوکی :

گوت یې سې په گوته شین غمې سې په ورمند (۲) کې
روشه (۳) که د یدن کې
وه په کچر لیښلی روشې (راشې)
روشه که د یدن کې
د بې زنگی اووز (٤) درو (٥) مشه مینه
روشه که د یدن کې
گوت یې سې په گوته شین غمې سې په ورمند کې
روشه که د یدن کې
* * *
گوت یې دې په گوته، په سپینه پیزه (٦) د پیز سون (٧) دی
ووړ ووړ بارون (٨) دی
جلکی نری ملیه (۹) تړ لې
ووړ ووړ بارون دی
لکه گبلې د څوغلی (۱۰) تړ لې وینه
ووړ ووړ بارون دی
گوت یې دې په گوته، په سپینه پیزه د پیزسون دی
ووړ ووړ بارون دی
* * *
یمو (۱۱) گوت یې ، یې یوړ .
دده دسمول (٦) یمو په غیږ کې پوتې (۱۳) شنه

---

(۱) راکه، (۲) سړوند، (۳) راشه، (٤) آواز، (٥) را ، (٦) پوزه (۷) پیزوان ، (۸) باران (۹) ملا (۱۰) بزغلی ، زوغلی ، (۱۱) زما ، (۱۲) دسمال ، (۱۳) پاتې .

ننه کوته کې دې ځون (١٤) جو ړ کی
دده دسمول یمو په غېږ کې پوتې شنه
غو مېسه نه یم چې پـه مـخ د ر خـځه شمه
دده دسمول یمو په غېږ کې پوتې شنه
یمو گوت یې ، یې یو و ړه
دده دسمول یمو په غېږ کې پوتې شنه
* * *
دلاس دسمال به و رته و ر کـړم
زما گوته یې یوو ړه
چې شیرین یارسې دا خپل مخ پرې پاکو ینه
زما گوته یې یو وړه
دده دسمال زما په غېږ کې پاتې شو نه
(پښتنی سندرې دوهم ټوك)
* * *
ښکیپه شمول (١٥) روغی (١٦) داخه ړنگه پروتې دو (٧١)
خدیجه مې ښه گلهیزې نورحسن دزروگوت یې دو
که مې جو ماټ په مخ کې نه وای
خدیجه مې ښه گلهیزې نور حسن دزرو گوت یې دو
په ټوك گړې به مې و یشتلی و ې مینه
خدیجه مې ښه گلهیزې نورحسن دزروگوت یې دو
ښکیپه شمول روغی داخه ړنگه پروتې (*) دو
خدیجه مې ښه گلهیزې نورحسن دزروگوت یې دو
* * *
شاشت په شاشت گوت یې په گوتهـ وی نای نا ی
لې لې وه‌عزت‌الله جانه وی نای نا ی لې لې

---

(١٤) ځان ، (١٥) شمال (١٦) راغی ، (١٧) ده .
(*) پروتې یوټول بوټی دی چې ډېر اوږده تانگونه کوي.
دا شین بوټی ډېر ښکلی راز راز گلان لری ، پانی یې تکې شنې او بیضوي شکله دي .

گل دګلاب به خدای رونه (رانه) کړي
لې لې وه عزت الله جا نه وی نای لې لې
د نورو ګلوسې باغچې ویلوړې (لاړې) دینه
لې لې وه عزت الله جا نه وی نای نای لې لې
شاشت په شاشت ګوت یې په ګوته ـوی نای نای
لې لې وه عزت الله جا نه وی نای نای لې لې
* * *
ګوت یې جوړ وې غمی د ځو نه (۱)
سره شې زریپ (۲) خو نه! سره شې
عالمه یارسې لیونی شی (۳)
سره شې زریپ خو نه ! سره شې
سالیونی ورپسې وشړی ع چې خمه (٤)
سره شې زریپ خو نه! سره شې
ګوت یې جوړ وې غمی د ځو نه
سره شې زریپ خو نه! سره شې
* * *
څه تنکی پسر لی دی مستې په کلی و ختې
د ناوې ګوت یې نشته په دا سې ختې (٥) وختې
د امازد یګر ګو ره چې تیر شی
د ناوې ګوت یې نشته په دا سې ختې وختې
دا سې به تیر ه شی زما د جا نان مینه
د نا وې ګوت یې نشته په دا سې ختې و ختې
څه تنکی پسر لی د ی مستې (٦) په کلی وختې
د نا وې ګوت یې نشته په داسې ختې وختې
* * *

---

(۱) ځا نه ، (۲) ظر یف خا نه (۳) شو ، (٤) ځمه ، (٥) جا سې کا لی ، د لته د ر سو ا یې په ما نا د ي ، (٦) د غو ا مستې

پېرې (۷) په مځيو (۸) کې نو وب (۹) خه نرۍ يې و نه
چې نو و ب نه وي گوت يې نه په لوسو مه (لاس کومه)
و ر خه (۱۰) و ر خه او س يې و و د ه (۱۱) که
چې نو وب نه و ي گو ت يې نه په اې سو مه
د ا شر بتې شنله ې يسې مو ځېښلې د ينسه
چې نو و ب نه و ي گو ت يې نه په لوسو مه
پېر ې په مځيو کې نو و ب خه نر ۍ يې و نه
چې نو و ب نه و ي گوت يې نه په لو سو مه

*   *   *

پېر ې ځنېځېلو (۱۲) کی لا چی او نګو و نه
چې اې نګ نه و ي گو ت يې نه په لو سو مه
په خما رو خمارو ستر گو
چې او نګ نه وي گو ت يې نه په لو سو مه
په ژړو (۱۳) ر وغله (۱٤) چې مو ز ي و يلې (۱۵) يمه
چې او نګ نه و ي گوت يې نه په لو سو مه
پېر ې ځنېځېلو کې لا چی اې نګو و نه
چې او نګ نه و ې گو ت يې نه په لو سو مه

---

(۷) پو ر ې (۸) ا حمد ځيو (۹) نوا ب (۱۰) ور ځه (۱۱) و ا ده
(۱۲) د ځد را نېود قوم يوه پښه ده (۱۳) ژ ړا (۱٤) را غلم (۱۵) و هلې .

# بنګړي

د پښتنو په کلیو او بانډو کې به داسې څوک نه وي چې هغه بنګړي و نه پېژني، بنګړي له ښیښو، او سپینو زرو سرو، پلاسټیک او مسالې څخه جوړیږي او ډول ډول رنګونه لري، په کلیو او بانډو کې ښځې او پېغلې بنګړي د ښایست او ښکلا له پاره خپلو سپینو لیچو ته اچوي، بنګړي په بازارو- نو کې په سرو، شنو، زیړو، تورو، بر ګوا ونو رو رنګونو سره په ښایسته ډول پلورل کیږي، د کلیو او بانډو ښځې یې په ډ- یره مینه او شوق سره استعمالوي او د دې ګاڼې د ود په دوی کې په هماغه ځانګړي قوت سره رواج لري، بنګړي له ښیښو (کره، کرو) نه زر ي دي او له دې امله ژر شو دانې غبرګ

سپینو لیچوته ا چول کیږي، د کلیو او بانډو ښځې یې په ولسی
اد ب سندرو (لنډیو) او پا سونو (سر و کو، نیمکیو) کې داسې په
زیاته مینه‌سره یادونه پر ځای کوي .

## ۱ ـ په سندروکی :

ـ بنګړي مې ستا په کټ کې ماټ شول
که مېړنی وې اوس مې ډک کړه ورمنډ ونه
بنګړي مې وو په لوس (۱) مې نه کړه
اوس به‌د یور (۲) غېږې ته ځم (۳) خولی (٤) لوسونه (٥)
بنګړي نیم پور ته، که نیم کور ته
چې په خالی ورمند دې سرو لګومه
ا سیل و ښی دي که بنګړي دي
اسیل وښی دي بنګړي چوغې (چیغې) ګڼوینه
د نیمو شپو کټو نه ډېر دي
بنګړو ته شرنګ ور که چې ودې پېژنمه
لیچې مې ډکې د بنګړیو
د بنګړو په شرنګ به اشنا راویښومه
لیچې مې ډکې د بنګړیو
دخپل اشنو (٦) په سر به یو یو موتومه (ماتومه)
سر مې په ښی ځنګل کې پرېږده
په کینه لیچه کې بنګړي دي موت (ماتې) به شینه
لیچې مې ډکې د بنګړیو
د موزوګی په سر به یو یو موتومه
د شاه لیلو (۷) د بنګړو شرنګ شی (شو)
زه‌دې اوبړی په شان منګولو ته ورځمه

---

(۱) لاس (۲) یار (۳) ځم (٤) خالی، تش (٥) لاسونه (٦) اشنا
(۷) لیلی

که خو بیولی مې رو(۸) و یښ کړې
ووړ کیه (۹) ! یمود لوس ښنګړي روغلی (۱۰) د یته
کهٔره ښنګړي دې روته (۱۱) رووړه (۱۲)
پهٔ ایوځ (۱۳) به یې سپینه خوله در که مینه
په خوب و یده وه به دې را و یښ کم
جا نانه زما دلاس ښنګړي را غلی د یته

* * *

## ۲ - په پامو نو کی:

و لـو یـــد م پـــه غـــو جـیرو (*) کې
ښنګړي مې موت (مات) شول سپینو لوسو کی
ستر ګو ته ر نګ دې را نجو و ر که
ښنګړي مې موت شول سپینو او سو کې
شنډو ته رنګ دڅڼوسي (۱٤) ور که مینه
ښنګړي مې موت شول سپینو لو سو کې
و لــو یـد م پـه غــو جـیـر و کـې
ښنګړ ي مې موت شول سپینو لو سو کی

* * *

په سپینو لیچو کې مې شور کوي ښنګړي
سو ر پیزمون مې اسري عاشکون (۱۵) مې لېونی کړ ې دي
پـه سر ینـد ه د ې ګـو تې کیښـو ې
عاشکون مې لیونی کړ ې دي
په پنهه جامه دې درګاه کړم مینه
عاشکون مې لېونی کړې دي

---

(۸) را (۹) هلکه! (۱۰) راغلی (۱۱) راته (۱۲) راوړه (۱۳) عوض
(۱٤) د نداسې (۱۵) عاشقان
(*) ددې ستوري شرحه په (۱٦) مخ کې وګورئ ·

په سپېنو ليچو کې سې شور کړي بنګړي
سور پېزمون سې اسري عاشکون سې ليونی کړې دي

* * *

لودی دغمو يوره (١٦) * ګيلهٔ - رووچوه (١٧) -
بنګړي روغلي دينه - يوره او
يا به دې زلفې کمر بند کم
ګيلهٔ رووچوه بنګړي روغلی دينه - يوره او
يا به زما په و ينو وويې خالونه -
ګيلهٔ رووچوه بنګړي روغلي دينه - يوره او

* * *

سوت دې شه بنګړي * سوت يې مه کې
شير محمد روته (١٨) روړي (١٩) دي
سوت دې شه بنګړي * سوت يې مه کې
په ورمند کې سې سو تلی (٢٠) دي * سوت دې شه بنګړي
خالك به ارخه ارخه (٢١) يا يی (٢٢) سوت دې شه بنګړي
زه يتو (٢٣) سينه په بل کلمه بد لومه سوت دې شه بنګړي

* * *

د بنګړي وال په کوخه مه خه (٢٤)
يور دې بندي دی په اميرو که ارځونه (٢٥)

---

(*) غوجېره (غجېره) بو ډول بوټی دی چې تردوو يادوه نيمو متړو پورې لښته او وده کوي ، ګل يې ژيړ او سپين دی . ګل يې ډير ښا يسته او خوند ور بوی لري، د ګاو ; وخت يې زر تيريږی پا نې او ګلان يې کټ مټ دعکاسی دونې په شان دي .
(١٦) ياره (١٧) را واچوه .
(١٨) راته (١٩) را وړي (٢٠) ملاتړلی (٢١) هر خه (٢٢) وايی
(٢٣) ستا (٢٤) څه (٢٥) عرضونه

چې پېغلو و لی (۱) مې په زړه شی
یور دې بندې دی په امیر و که ار ځونه
کو نډه ول (۲) مې یېږ (۳) شی په شکوره کې خوشتو مه
یور دې بندې دی په امیرو که ار ځو نه
د بنګړي وال په کوځه مه ځه
یو ر دې بند ي دی په امیرو که ار ځو نه

* * *

بنګړي مې شو ر کی په د سمول (د سما ل) بې و تړ مه
یور مې روغلی (راغلی) د یدن ته یې ور ځمه
خدایه جګو غرونې و کې بارو نو نه (بارا نو نه)
یورمې رو غلی دیدن ته یې و ر ځمه
چې زه په پنه کم بو بري (٤) زیړي ګلو نه
یور مې رو غلی د یدن ته یې ور ځمه
بنګړي مې شور کی په دسمول (٥) بې و تړ مه
یور مې رو غلی د ید ن ته یې ور ځمه

* * *

د بنګړي وال په کوځه مه ځه
ودی لوس بنګړي مې موتوي مو (٦) ژړ و ینه
لو ړې (۷) بنګړي وا لې
په خوله دې یخ (۸) رو ته (راته) ونه و ې
او ړې بنګړ یوالی
د با نولوندې (۹) دې کم سین دې کړ مه
لړ ړې بنګړ یو الې
د بنګړ ي وال په کوځه مه ځه* وی د لوس بنګړي مې موتوي موژړ وینه
او ړې بنګړ یو ا لې

* * *

---

(۱) پېغلوا لی (۲) کنډه ول (۳) هېږ (٤) با بري (٥) دسما له (٦) ما (۷) لا ړې (۸) هیڅ (۹) لا ندې

يو و و ړي (۱) و وو ړه (۲) بيا رو ووو ړه لو نګېنې
په خنګ رو ووو ړه چې د شر نګ د بنګړو شينه
که دې ز ما د يد ن په کا ر وی
په خنګ رو ووو ړه چې د شر نګ د بنګړو شينه
د ګو ډ ر غا ړ ه ا جا ره و و خله (۳) سينه
په خنګ رو ووو ړه چې د شر نګ د بنګړو شينه
يو ووړي ووو ړه بيا رو ووو ړه لو نګينې
په خنګ رو ووو ړه چې د شر نګ د بنګړو شينه

* * *

سپينې با ر يکې ليچې تشې ګرزو مه
بنګړ يوا لې تروړې يموږ (٤) کلی ته روشه (را شه)
بنګړي دې تول په بيه رو کړه (٥)
بنګړ يوا لې ترو ړې يموږ کلی ته ر و شه
کم عقلې مه غو ړه (٦) په سرو غر مو کور و نه
بنګړ يوا لې تروړې يموږ کلی ته روشه
سپينې با ر يکې ليچې تشې ګرز ومه
بنګړ يوا لې تروړې يموږ کلی ته رو شه

* * *

شو ر دې ګله کړ شا پيرو بدرۍ جما لې وظا لمې بنګړ يوا لې
سر دې زما په خنګل کېږده و ظا لمې بنګړ يوا لې
که بنګړي ماتشی ليچې زه در دې کومه و ظا لمې بنګړ يوا لې
شو ر دې ګله کړ شا پيرو بدرۍ جما لې وظا لمې بنګړ يوا لې
( پښتني سند ر ې د و هم تو لګ )
ر نې (۷) ووچوه (۸) بنګړ يوډک لوسو نه
ړ نګی بنګې جلې سو ړه (۹) سپ کيږي غنمر نګې جلې

---

(۱) واړې (۲) و ا وړه (۳) وا خله (٤) زموږ (٥) را ګه (٦) غوا ړه ۰ (۷) را باندې (۸) وا چوه (۹) سا ړه

بنگــړي د ي ليري کــه مــا تــيــږي
ړ نگې بنگې جلې سو ړه مې کيږي غنم ر نگې جلې
د ميني جنگ کې خو لی (خالی) کيږي وړ مندو نه
ړ نگې بنگې جلې سو ړه مې کيږي غنم ر نگې جلې
رنې وو چـو ه بنگــړ يـو ډ ك لـو سو نـه
ړ نگې بنگې جلې سو ړه مې کيږي غنم ر نگې جلې

* * *

لو ړې (۱) بنگړ يو ولې (۲) د بنگړ يو ول يو ره (۳) جا نا نه
وه چې مو (۳) بنگړي بنگړي کول خپړې خو ر مه
بنگړي دي و بو سه (۵) د لو سه (لاسه)
وه چې مو بنگړي بنگړي کول خپړې خو ر مه
په نيمو شپو ئې بنگړي جو غې (چيغې) کړ وينه
وه چې مو بنگړي بنگړي کول خپړې خو ر مه
لو ړې بنگړ يو ولې د بنگړ ول يو ر ه جا نا نه
وه چې مو بنگړي بنگړي کول خپړ ې خو ر مه

* * *

مو ت (٦) مې شوه بنگړي چې وړ مند (۷) کې مې سو تلی (۸) وو
ډ يره پرې خپه شوم خپل آ شنو مو ته (۹) روو ړي (۱۰) وو
مين د ې کــړ م خـو شال د ې نـه کــړ م
ډ يره پرې خپه شوم خپل ا شنو مو ته روو ړي وو
دا سې د ې وچ کړ م لکه د روزه (۱۱) په واتو نه
ډ يره پرې خپه شوم خپل ا شنو مو ته روو ړي وو
مو ت مې شوه بنگړي چې وړ مند کې مې سو تلی وو
ډ يره پرې خپه شوم خپل ا شنو مو ته روو ړي وو

* * *

---

(۱) لا ړې (۲) بنگړي وا لی (۳) يا ره (٤) ما (٥) و باسه (٦) مات (۷) مړ وند (۸) سا تلی (۹) ما ته (۱۰) را وړي (۱۱) دغنمو- وچه درمه

ایلو (۱) د شنو بنګړ یو لیچي ته کو ینه
بنګړي وولې (والی) ښکلی بنګړي رو وړه (۲)
ګوتې په ګو ته ټیک په پیز ه
بنګړي وولې ښکلی بنګړي رووړه
زرګره ټوله دې یاری ته جوړه کړ مه
بنګړي وولې ښکلی بنګړي رو وړه
ایلو د شنو بنګړ یو لیچي ته کو ینه
بنګړي وولې ښکلی بنګړي رو وړه

* * *

سبو (۳) دسرو بنګړ یو لیچي ته کوم لړلیږه ! (٤)
سات (٥) په تیروم لو لیږه
د یدن دې که ورد دې پلمه کی
سات په تیر وم لو لیږه
نه‌دې دیدن وکی نه‌دې یو وړل و وړوړه (او روزه)
سات په تیروم لړ لیږه
سبو د سرو بنګړ یو لیچي ته کوم لړ لیږه !
سات په تیروم لړ لیږه

* * *

یاد لیلو د لوس بنګړي په شرنګیدو ښکو ري (٦)
او په شنه‌و سروېي سور پیزمون (۷) په زنګیدو ښکو ري
ستر ګې دې سرې رووړ ولې
او په شنه‌و سروېي سور پیزمون په‌زنګیدو ښکو ري
د اسله (اصله) سرې دي که تو (۸) ته یر ژړلی د ینه
او په شنه‌و سروېي سور پیزمون په‌زنګیدو ښکو ري

---

(۱) لیلی (۲) را وړه (۳) سبا (٤) لا لیه ! (٥) ساعت
(٦) ښکاري (۷) پیزوان (۸) تا .

بیاد لیلو د اوس بنگړي په شرنګېدو ښکو ري

او په شنلو سرو يې سور پېزمون په زنګېدو ښکوري

*　　*　　*

توري بنګړي والي * ګیلې ګیلې پرتوګ دي لا رجارو کوینه

لاړې له ما لاړې .

د بنګړي وال په کوڅه راغلم * لاړې له ما لاړې ، بنګړي-

بنګړي ناري وهي ماژړوینه

توري بنګړي والي * ګیلې ګیلې پرتوګ دي لا رجارو کوینه

لاړې له ما لاړې .

(پښتني سندري دوهم ټوك)





دلاس بو گو ( باوو ) چن پشتی هەرمنی بی
پەمینە نرە پەلاس کوی

# بوګون

په کلیو او بانډو کې د اګاڼه او پسول هغه وخت ښځې په لاسو کې اچوي چې واده شوې وي، دا ګاڼه د واده نه د مخه پېغلې او جلکۍ د رواج دود له مخې په لاس کولای نه شي، په کلیو او بانډو کې دا ګاڼه ناوې ته د خپلې پلار ګڼې له خوا نه د نورو پسول سره بوځای کیږي، دوه ده په ورځ کله چې ناوې د پلار له کور نه د خسر کور ته د روانیدو نه د مخه په ډول ډول ګاڼه او کالیو سره ښکلې او سینګار کړي نو باووګان هم د هغې د لاس ښکلیو او وړ منډونو ته وراچوي.

دا ګاڼه زرګران له سپینو زرو او مسو نه په خاص هنري ډول سره ډېره ښکلې جوړوي کله چې د باووګانو غولی تیار کړي نو بیې بیا پر مخ یاندې ډول ډول په زړه پورې ښکلې سپرغې او ورخې جوړ وي، دا شان د باووګانو پر دواړو ژیو

باندې چې د لاس د بټکیو د پاسه د یوې لښتې اوسږې په وا سطه کلکیږي ، سره او شنهٔ غمي همور بانديا یږدي د د غي ګا ڼې شکل داستواني په ځیر دی. دا ګانه ډیره درنده ده له دې کبله یې د کلیواو بانډو ښځې چې نوې واده شوې وي تر دوو یا دریو کالو نو پورې په سینه سره په لاس کوي ، له هغې وروسته یې دد روند والی له کبله چې پخوانی قوت ناوې ته ور پاتې نه وي نه شي په لاس کولای ، نو دا ګانه یوازې د نا ویتوب په وخت کې په سینه سره استعما لیږي اورواج بې په پښتنو کې عام دی. له دو واو دریو کالو وروسته دا ګانه هره ورځ نه په لاس کوي بلکې د واده په شپه دا ختر په ورځ او یا په دا سې نوروښادیو یا په ښو ورځو کې یې د ډول اوسینګار د پاره پخوانی یاد او استعما ل په ځای کیږي. له باوو ګا نو سره پښتنې میرمنې زیاته مینه لري له دې امله د دې ښکلې ګا ڼې نوم په پښتو ولسي ادب سندرو (لنډیو) او پاسونو (سرو کیو ، نیمکیو) کې د اسې په مینه سره یا د یږي :

## ۱ـ په سندر وکې:

بوګون (۱) په اوس ګوت یې په ګو تو
زرګره ټولهٔ دې یوری (۲) ته جوړه کړمه
بوګون مې وو په اوس مې نه کړه
ووس (۳) په خولې (خالي) لوسود یو رسلوم (٤) کومه
چې سپین بوګون یې په لوس نه وي
هغه نیستمن دی چې سړ ی په پخو ینه
بوګون مې پوتې (۵) په کوله (٦) شوه
د بیمور ی (۷) له اوون مې نه شي سړه بهشمه
ښا شت په ښاشت ګوت یې په ګوته
داسپین بوګون مې په یوری ګټلی دینه

---

(۱) باوو ګان، باهوګان، (۲) یاری (۳) اوس (٤) سلام
(۵) پاتې (٦) کاله، کور (۷) بیماری







دا هم د بوګوت (بازوګانو) نورې ځانګړې بڼې

نن مې د لوس بوګو (۱) شر نګېږي
يامې يور په ليار (۲) دى يا به ووس (اوس) روشى مينه
زر ګره پاس په د کان کېنه
ماته جوړ که ده بو ګـون ببر ششتو نه
د لوس بوګو مې رونه موت شى (۳)
زه به د يور په مخکې خه ځووب (٤) کومه
بو ګو نو ډ که غېږ ه رو که
که بيا شړ ى په سر وي يا ري دې کمه

* * *

## ۲- په پامونوکى:

په متوکې مې مه نيسه ليلى شا بو ګون مې خرګوي (٥)
يمو (٦) خيولى (۷) انګړه ته بيا روشه (۸) ليلى
سندره ګډوده لوړه (۹)
يمو خيولى انګړه ته بيا روشه ليلى
پيڅه پلو يې تولوه منځ يې ګاونه
يمو خيولى انګړه ته بيا روشه ليلى
په متوکې مې مه نيسه ليلى شاه بوګون مې خوګوي
يمو خيولې انګړه ته بيار وشه ليلى

* * *

وى موري لړه شه (۱۰)! ييلته (۱۱) مې بوګو دى
موري رويې (۱۲) وړه شين بوغ (۱۳) يې تو له کى
زه به سندره د رته وکم
موري رويى وړه شين بوغ يې تو له (۱٤) کى

---

(۱) باو و، باهو (۲) لار (۳) شو (٤) ځوا ب
(٥) خوږوي (٦) زما (۷) خبالى (۸) راشه (۹) لاړه (۱۰) لاړه شه (۱۱) دلته (۱۲) رايې (۱۳) باغ (۱٤) تاله

وی سوري لوړه شه ! ییاتده سی بوگودی
سو رې رويې وړه شین بوغ يې تو له کی

* * *

د يلتده مې بوگو دی سو رې رويې وړه
كور رو ته (۱) سور اور دی
جلکی خو شتده گو درنه رو غله
كور رو ته سور اور دی
اکه بلبله ! چې با رون و يلې (۲) و ینه
كور روته سوراور دی
د يلتده مې بوگودی سور ېر ويې وړه
كور رو ته سور اور دی



---

(۱) را ته (۲) یار ا ن و هلې .





د لاس د مړوندونو

وبنې چې په کليو او بانډو کې

يې مېرمنې د دود له مخې په خپلو مړوندو کې اچوي

# وښی

وښی د ښنګړيو او باووګانو په څېر د لاسو ښکيو او ور-
سندو (سړوندو) ته اچول کېږي، نن په کليو او ښارونو کې د دغې
ګانې دود څه په خلکو کې کم شوی دی او دا انتيك پلورو-
نکو په دکانو کې زيات ليدل کېږي وجه يې دا ده چې انتيك پلورونکي
يې له کليو او ښارونو نه په ارزان قيمت سره رانيسي او په خار-
جي سيلانيانو باندې يې په لوړ قيمت سره پلوري.

دا پښتني ګانه له سپينو زرو څخه جوړېږي ځکه يې خارجي سيلا-
نيان په ښه بيه اخلي (دا ګانه به له خالصو سپينو زرو څخه هم
جوړېده)، دا پښتني ګانه زرګران په ساده او ښکلي ډول جوړ-
وي ساده وښی ښوی جوړېږی او پرمخ باندې يې کوم ګل او رخې



تیلک دې په پوزه روڼ ځلیږي
لکه سپوږمۍ د څوارلسم ختلې وینه

نه ښکلې (انځور) کیږي د ښکلیو و ښیو پرسخ بانډې رخې او ګلونه په خاص هنري ډول سره انځور کیږي ، د اپښتنې ګانه یوه یوه د لاس مړو ندو ته‌اچول کیږي خوار او بیوزله‌خلک چې دلوړې بیې دو ښیو دا خستلو توان نه‌لري‌اوځانونې‌چې له مسوجوړوي او پرسخ بانډې یې زرګرانو دزرو اوبه ورکړې و ي ځانته اخلي . وښې بدد وو او د ریو ښکړیو دیو ځای کیدو په خپر پلن وا لی او پر پړه ښه لري ، داګانه سر بیره په دې چې په کلیو اوبانډو کې یې ناوې ته ځینې خلک کوي سپین سرې او پخې ښځې یې هم په لاسو کوي ، داګانه هیڅ‌ډول غمې‌اوګو نګړي پرسخ او خنډو بانډې نه لري چې په را ځو ړند اوکوړي وي،دوښې شکل دساعت د بند په‌شان دی ، په نادرډو ل سره په ځینووښیو کې غمې هم لګول شوي وي او په‌مینه سره سړوند ونو ته‌اچول کیږي ، په پښتو ولسې ادب کې دنورې‌ګانې غوندې ددې‌پسول یا دونه په سندرو ( لنډیو )او ټاپونو (سروکیو ، نیمکیو) کې داسې په‌ښه شان سره راغلې ده ·

**۱ ـ په سندروکې :**

و ښې ښکړي ددنیو (۱) دو ددی
زه‌د نیستمن‌جانان نه نه‌غوړم (۲) دود و نه

و ښې مې ووپه لوس مې نه کړه
اوس مې یاد یږي د لښتیو کتورونه (۳)

و ښې مې وو په لوس مې نه‌کړه
د کوله (٤) سړی (٥) پخوم په‌تش لوسونه

د جلکیو سره جنګ شی (٦)
ښکړي تموم (٧) شوه په وابنو (٨) ویشتل کوینه

---

(۱) دـ نیا (۲) غوا ړم (۳) کټارونه (٤) کاله ، کور (٥) ډوډۍ (٦) شو (٧) تمام (٨) وښیو

سو ته (۹) وو پړی او کنګړ جو ړ که
کنګړ می نه شته تش او سو نه ګرزو مه
که می د یار وښی په لاس و ای
ما به له تړ او نجو نو پو ر ته وره لاسو نه
تر بو رد مروز روښی دی
خدایه زوړ یې کی د تر لې ټه مر و نه وه نه
* * *

## ۲ - په پا مونو کی :

د با نو سودو ګره (۱۰) د با نو
وی دا ډاډ وښی می په یوری ګټلی د یمه
که د نیو ووړي (۱۱) بیا رو ووړي
وی دا ډاډ وښی می په یو ری ګټلی د یمه
رڼا (۱۲) و به نه وړيخو رو (۱۳) لږ نه ي صور تو نه
وی دا ډاډ وښی می په یو ری ګټلی د یمه
د با نو سودو ګره د با نو
وی دا ډاډ و ښی می په یو ری ګټلی د یمه



(۹) ما ته (۱۰) سودو ګره (۱۱) واوړي (۱۲) رڼا (۱۳) خاورو

# چمپک

دغې پښتنې ښکلې ګانې (*) ته چار ګل او ميخك هم وايي، دا ګانه دوه ړې شپږ پولي (شش پولي) په شان کوچنی ګړ د غولی اري، دغولی پرمخ يې په غوټمنځ کې قيمتي غمي په خاص هنري ډول سره ايښو دل کيږي، دغمی د شاوخوا برخه يې تر څنګه وپورې په ځانګړې يورخو او نخشو نومره ښايسته کيږي، دټيك د څنګه و د پاسه دغه يو ړې ښکلا لري. پاره چار: چا پيره واړه و اړه غمي زرګران په ډير هنري قوت سره ور بندي

(*) په ځينو پښتنو سيمو کي د ټنډې اوچتين رو پې ته ټيك ويل كيږي خو منګل چارګل ته ټيك وايي.

ايږدي، دټيك ښڼهې پرې ، پرې جوړيږي . دټيك لاندې برخه يوه کـږه درمه لري چې دټيك دادرمه پوزې ته اچول کيږي او ټيك په پوزه کې پرې بنديږي ،ټيك له سرو اوسپينو زرو څخه جوړيږي اود پښتنې پسول ډيره غوره برخه جوړوي .

داګانه په کليو اوبانډو کې ميرونې ښځې چې واده يې وي يعنې ناوې ته دنورو پسول سره يوځاى کيږي ، پيغلې او جلکۍ داګانه په پوزه کولاى نه شي ، دغه‌نې له ښځې داګانه ناوې او ميړونې ښځې په ډيره زياته علاقه اوسينه سره دښکلاو ښا يست دپاره استعمالوي ،دټيك داستعمال لپاره پښتنې ميرمنې دپوزې دتميزې (سږمې) ديوال سور وى کوي او په دې سوروي کې دټيك دغولۍ لاندې کږه درمه‌چې دچنګك په‌شان‌ده ورننه باسي اوپه‌دې ډول سره ټيك په پوزه کې بنديږي . دپښتو ولسي ادب په‌ويړه ورشوکې دنورې ګانې په‌شان ددې‌ښکلي پسول يادونه په‌سندرو (لنډيو) اوباسونو(سروکيو، نيمکيو) کې داسې په‌زړه وړ ونکې سينه سره پرځاى کيږي .

## ۱ـ په‌سندروکې:

ترڅنګير بند چارګل يې نيسه

ترسره غمې لاندې يې تيرکړل کاروانونه

ټيك‌دې په پوزه کـه‌خداى يود (ياد) که

ګوندې نصيب دښوځوانانو سره شينه

ټيك دې په‌جګه پوزه خوندکي

اکه دخلي خووته (۱) وووره (۲) تالـه‌وينه

ټيك دې په‌پوزه کـه‌راوزه

لاس په‌تندې کيږده چې ودې پيژنمه

---

(۱) خواته (۲) واوره

ټیك یې په سر وشنه ومنزه کی
لکه بلبل چې په چرګ بانګ نارې وهینه

ټیك مې کوړته او بو یوو ړ
پر سو سینه ورته ونیسه بند و نه

ټیك دې په پوزه رین ځلیږي
لکه سپوږمۍ دې پنځلسي ختلې وینه

ټیك په کورسه کې جوړیږي
د بالا بوغ (باغ) زرګره سوت دې شه لوسونه

په سره قرآن به دې غوخ نـه کم
کهلا که پوزه بې چورګله (۳) زړه کمه

ستا دې چورګل ځلو رپرې دي
ډیرې تیرې دې اشکون (٤) الولوینه (٥)

توچې (٦) پګړۍ په سر کږه کړه
زه به چورګل په پوزه تیغ ودرومه

ستا دې چور ګل په پرو غوخ شوم
کمکی وم ستر شوم ورك سې نه شوه پیوورونه (۷)

په سره چورګل به دې الول کم
سودې چورګل په پر وډیروژلی دینه

دې غوړه کی په پړك روخیجه (۸)
سودې چورګل په ډنډرډیر وهلی دینه

چورګل په پوزه که روزه
لمر دښو یست (۹) غورې (۱۰) کوي چې خجل شینه

چورګل په پوزه که خدای یوه د (۱۱) که
که چیرې یوردې مسوپر (۱۲) وي روبه شینه

چورګل په لړه پوزه خوندکی
لکه په لوړ ځنو ر (۱۳) کې ووچوي (۱٤) تالونه

---

(۳) چار ګلمه (٤) عاشقان (٥) حالا لوینه (٦) تاچې (۷) پیاورونه
پرهارونه (۸) را خیږه، را خیجه (۹) ښایست (۱۰) لا پې (۱۱)
یاد (۱۲) مسافر (۱۳) چنار (۱٤) واچوي

چور گل په کور مه کې جوړ یږي
د پیښور زرگره سوت دې شه لوسونه
گوت یې په کو ته ټیک په پیزه
زرگره ته لـه دې یاری ته جوړه کړمه
توره تیا ره دو (ده) نه دې وینم
په څنځیر ي چور گل دې کیږده مشالونه
* * *
## ۲- په پامونو کې :
تا که (ټکنده) غرمه دو (۱۵) اشکون له تندې مرینه
لیلو (۱٦) او به په سپین چور گل کې ور کوینه
زړه مې غریب شو رو ته ژوړي (۱۷)
لیلو او به په سپین چورگل کې ورکوینه
یمو نه (۱۸) غواړي تیرې چارې تیرساتو نه (۱۹)
لیلو او به په سپین چور گل کې ور کوینه
تا که غرمه دوا شکون له تندې مرینه
لیلو او به په سپین چور گل کې ورکوینه
* * *
یتو (۲۰) دې چورگل د پروزیږه روښنا یې دو
شول (۲۱) وو چوه گرمی دو
خول (۲۲) دې وویه (۲۳) خبر دې نه کړم
شول وو چوه گرمی دو
نو غه (۲٤) بړوکی د سر کو شنې وسرونه
شول وو چوه گرمی دو
یتو دې چور گل (۲۵) د پروزیږه روښنا یې دو
شول وو چوه گرمی دو

(۱۵) ده (۱٦) لیلی (۱۷) ژاړي (۱۸) زما نه (۱۹) سا عتو نه
(۲۰) ستا (۲۱) شال (۲۲) خال (۲۳) واهه (۲٤) ناغه (۲۵) چارگل

تېيك مې دا ړې وا ړې دا چا ړې دزر گر د ينه

سرې ستر گې خما ړې بو نه (۱) دې جلند ر د ينه

كه چـا بـېـلـتـو ن لـېـد لـى نـه و ي

سرې ستر گې خما ر ې بو نه دې جلند ر د ينه

تېيك مې دا ړې وا ړې دا چا ړې دزر گر د ينه

سرې ستر گې خما ر ې بو نه دې جلندر د ينه

پسر لى گل دې بېلتا نه ختلى د ينه

سرې ستر گې خما ر ې بو نه د جلند ر د ينه

*　*　*

تېيك مې د سروزرو دو نې دو نې (۲) غمى مې د لجبرو دو نې دو نې

خو ست ته تلې لښكرې و يلو ړه يم (۳) دو نې دو نې

*　*　*

خلك ا ختر ته كا لى مېنځى غمى مې د لجبر دو نى دو نى

خو ست ته تلې لښكرې دو نې دو نې

زه خوا ره نا سته سرور په خولا كو مه غمى مې د لجبرودو نې دو نې

خو ست ته تلې لښكرې و يلو ړ يم د و نى دو نې

تېيك مې د سرو زرو دو نې دو نې * غمى مې د لجبرو دو نې دو نې

خو ست ته تلې لښكر ې و يلو ړه يم دو نې دو نې

*　*　*

ننو و تې (٤) مې و ړې و ړې * تېيك مې سلو مى (٥) زړ گى مې-
يتو (٦) په شو ن (٧) زرې ورې * روغله محبو به روغله محبو به
جلكى و يلو ړه په امو نځه دو (٨)

روغله محبو به روغله محبو به

دا نرى ملا (٩) يې سودوگر (سودا گر) بيه كو ينه

روغله محبو به روغله محبو به ر وغله

---

(۱) با نه (۲) دا نې دا نې (۳) ولا ړه يم (٤) ننوا تې (٥) سلامى (٦) ستا (٧) شا ن (٨) لما نځه ده (٩) ملا يه

ننوتې سې وړې وړې
ټېک سې سلوسی زړگی سی یټو په شون زرېورې
روغله محبو به روغله محبو به

* * *

پونې (۱۰) لټوم د بنگو پونې لټوم * چورگل دجلکې ورك دی
ډیوه بله گرزوم پونې لټوم
روکړی (راکړی) گل د بیرته ووخله
ډیوه بله گرزوم پونې لټوم
زه‌دمرگی پەسپر (۱۱) خم (۱۲) شپټه به شپنه
ډیوه بله گرزو م پونې لټوم
پونې لټوم د بنگو پونې لټوم * چو ر گل د جلکی و رك دی
ډیوه بله گرزوم پونې لټوم

* * *

دسرو زرو چورگل * په سرېې تور لونگ ټوسبلی دي *
مسته کبر جنه دو
د گل گلاب دگل د پوره (۱۳)
مسته کبرجنه
جلکی ویلوړې د باغو و ن (۱٤) سلوم کوینه
مسته کبر جنه دو
دسرو زرو چورگل * په سرېې تور اونگ ټوسبلیدي *
مسته کبر جنه دو

* * *

ټېك سې پیزسونی جوړ که زرگره
زه پرد ي وطن ته خمه مسو پر ه
ټوټې ټوټی په تور و روشې (۱٥)
زه پر د ي وطن ته خمه مسو پر ه

---

(۱۰) پانې (۱۱) سفر (۱۲) ځم (۱۳) پا ره (۱٤) با غو ا ن
(۱٥) را شې .

د بې ننګۍ اواز دې رومه شه مینه
زه پردي وطن ته خمه (ځمه) مسو پر ه
ټیکه‌مې پېزمو نی جو ړ که ز رګر ه
زه پر دي وطن ته خمه (ځمه) مسو پره

* * *

ټیك دې پاچا خال دې و زیر دی
دا لونګین دې رسالدار په‌مخکې ځینه
چارګل دې بیا په پوزه سپو رکی
لکه سلطان پاچا چې تخت ته وخیژ ینه

* * *



# شکا

د اګانه د پښتني پسول ډېره سپينه او ښايسته برخه ده، په عمومي ډول له سرو زرو څخه جوړېږي او يوه تنکۍ نرۍ غوندې ډنډه لري که څه هم ددې ګاڼې جوړښت او بڼه لښتۍ ته ورته او ډېره زياته سپينه ده ددې ګاڼې سپين والى له دې کبله دى چې دا ښايسته ګاڼه د ټيك او چارګل په شان پوزې ته اچول کيږي د کلېو او باندو ښځې د ټيك او چارګل په څېر ددې ګاڼې له پاره پوزه سورى کوي او ددې ډول او سينګار له پاره يې په سينه پکې اچوي، دا پسول د کلېو او باندو د ښځو ډېره خنډنه او

ار غو نې ګانه ده چې اوس يې ځای ټيك نيولی دی ، ددې ښکلي پښتني پسول يادونه دپښتو واسيادب په بڼ کې داسې راغلې ده.

**په لنډه توګه :**

نتكي د سره جلب يې شين دی
لكه ځنور (چنار ، ځنار) نې چې منګورختلي وينه

نتكی دې چاله پوزې وښکه
په نتكی نه يم يتو (ستا) پەوچوشنله ويمه

ز پړه نتکی سور يې چور ګل دی
په کې پروته (۱) دېدسروز رو ځنځير و نه

مخ ته دې سم کتلی نه شم
ستا دې نتکی ډنلور مې ستر ګې بريښو ينه

مو ته د زر و نتكی رووړه (۲)
که ته شړی په سروې خه يې کومه

ما درته نه وې شرميدمه
د سرې نتکی سره پيز وان مزه کو ينه

سپينې سپوږمی ته خولګی روکه
په تر يږمی کې دې نتکی خولې ته روخينه (۳)

ووګه (٤) مې خوب ليده که خه وه
دا شنو بريت سې له نتکی تو و (٥) شويووته

د نتکی لو ل (٦) به په خيروت (۷) کم
که مې ا شنو په دښمن سره کړه سنګر و نه

نتكي د سره جلب يې شين د ي
لكه شمشا د باندې چې مار ختلی و ينه

---

(۱) پراته (۲) راوړه (۳) راځينه (٤) بيګا (٥) تاو (٦) لال (۷) خيرات

جنګ دي جوس پټي ته روغی (راغی)
نته دي ډال که په چورګل که ګوزارونه
د چا نټکی د چا پیز سون(۸) وي
سو(۹) د جلکی په پوزه دووړه(۱۰) ولیدنه



(۸) پېزوان (۹) سا (۱۰) دواړه

# پېزوان

په کلیو او بانډو کې د ښکلې ګاڼه (*) ناوې او پېغلې په پوزه
کې د ټیك سره یو ځای د ډول او سینګار د پاره په مینه استعمالوي
دا پښتنې په زړه پورې پسول زرګران د سرو او سپینو زرو یا له
نورو ارزانو فلزاتو نه چې پرمخ باندې یې د سرو او سپینو
زرو اوبه ورکوي د ساعت د بند په اندازه په ډول ډول مینو مز-
یو او ګړو چې یو له بله یې کړې سره خښې او بندې کړې وي په ډېر
ښکلي شان جوړ وي ، د زیاتې ښکلا له پاره زرګران د پېزوان
تیر او د جوړ شوي بند مزیو او کړیو سروته واړه واړه ګینګړ-

---

(*) او ښانو بیا غاړې کړې کړې
چې پرې سپړیږي سپینې خولې ژېړ پېزوانو نه

ي او غوټې ورا چوي، پېزوان د ټيک اخښلې نه نيولی تر غوږ پورې رسېږي .

دا ګاڼه په کليو او بانډو کې د پاخه عمر او زړې سپينې سرې ښځې نه استعمالوي بلکې د دوی له مخې يې پېغلې او ناوې په مينه سره په ځان کوي. د پښتو د ولسي ادب ګلونو په باغ کې يې ستاينه داسې په سندرو او ټپونو کې راغلې ده :

او ښانو بيا غاړې کږې کړې
چې پرې سپرې دي سپينې خولې ځېړ پېزوانونه

پېزمون مې ښه جوړ که زرګره
يو رمې ژړنګې دي د پېزمون ارمونه کوينه

اشنا مې نوی چلم کښ دی
د خيږ ی اوربه په پېزوان ورته ور وړمه

تر څنځير ي پېزمون يې نسه
د سپينې خولې لوندې يې تېر کړه کاروانونه

موته وړ وکی پېزمون جوړ که
چې زه او به چښم دی لامبو روته (۱) ويينه (۲)

پېزمون کودۍ که او به روکه
يو دې ثواب (۳) دی بل ديوراله تندې مرينه

پېزمون مې خړ واو بو يو وړ
د کونډې زيه (٤) ورته ونيسه ورخونه

پېزمون په کورمه کې جوړ يږي
د کندوور (۵) زرګره موت دې شه لوسونه

پېزمون مې خړ واو بو يو وړ
په سپينه خوله به لامبو زن ور کوزومه

پېزمون مې يتو په بريت کې بند شو
تر دروازې پورې بندۍ د رسره تلمه

---

(۱) راته (۲) وهينه (۳) ثواب (٤) زويه (۵) کندهار

پېزمونه خوندوه (خاندو) هوسېږه
سپوږمۍ اخترۍ پوس په شنډو به دې وږمه
پېزمونه تهولې خپه یې
که کلي لېږدي تو به پوس په شنډو وږمه
او به سې چښې پېزمون سې تو ند شو
په نري بود (باد) یې و چوم و بلو ږه یمه
تاوان زما د پېزوان را که
چې په وصال کې ستاله لا سه توتې شو نه

*　　*　　*

## پا مونو کی :

په دا نري پېزمون رو وګرزه و ند یاری
ښکلی با زور (٦) بند دی لیا رې (٧) لیا رې
خدایه! د مور عمر یې ډېر کې
ښکلی با زور بند دی لیا رې لیا رې
چې مو ز دیګر (٨) شی لو راو بوته رو لېږینه
ښکلی با زور بند دی لیا رې لیا رې
په دا نري پېزمون روو ګرزه و ند یارې*ښکلی با زور بند دی لیارې لیارې

*　　*　　*

سپوږمۍ اختر دی ډاول (٩) نور کمه
پېزمون به پوس په شنډو سوور (١٠) کمه
خلك دې و وږه (١١) ګومونی (١٢) کړه
پېزمون به پوس په شنډو سوور کمه
چې دې ګړي لو ندې (١٣) دوخوړل څرخونه
پېزمون به پوس په شنډو سوور کمه
سپوږمۍ اختر دی ډول نور کمه
پېزمون به پوس په شنډو سوور کمه

---

(٦) با زار (٧) لارې (٨) مازدیګر (٩) ښایست، سینګار (١٠) سوار
(١١) واږه (١٢) ګومانی (١٣) لاندې

داسور پېزمونديپه سرو شنهو برو بر (۱٤) کړو
اوردې پـه مو (۱۵) بـل کـړو
نن مې د اوس بوګو شر نګېږي اوردې په مو بل کړو
یو (۱٦) مې یو ر په لیا ردی یو به اوس روشی مینه
اوردې په مو بـل کړو
داسور پېزمونديپه سر وشنهو برو بر کړو
اوردې په مو بل کړو

* * *

سور پیز مون په جلبو نه
وی مو پیژ نې که نه وورۍ (۱۷) مې انله
او ښکې مې پر بږده چې بهېږي
وی مو پیژ نې که نـه وورۍ مې انـله
یمو د زړه چینې په جوش رو غلی د ینه
وی مو پیژ نې که نه وورۍ مې انله
سور پیز مون په جلبو نه
وی مو پیژ نې که نه وورۍ مې انله

* * *

سر کی پیز مون دې په کنهو ختلی لمر دی
چا وې چې مو زدیګـر دی
ګلو نه ډیر دې خدای دې ډیر کې
چا وې چې مو زدیګر دی
په شیندې ګل پسې سر تورې وو تمه
چا وې چې مو ز دیګر دې
سر کی پیز مون دې په کنهو ختلی لمر دی
چا وې چې مو ز دیګـر دې

---

(۱٤) برابر (۱۵) ما (۱٦) یا (۱۷) اورۍ




دا ګانه د ښځینې پسول له پره غوره برخه ده ، د کلیو او بانډو ښځې او ناوې یې د نورې ګانې سره یوځای په غاړه کوي، د عنعنې له مخې په منګلو کې هغه پېغلې او جلکۍ چې واده شوې نه وي دا پسول نه استعمالوي خو سره له دې دواده په شپو کې یې د دوستو (خېښو، وراېانو) په نوم چې د هلک له کوره د جلۍ کورته بیا یې دا ګانه په غاړه کوي او بیا له دې پرې بل وخت نشي په غاړه کولای دوی وایې خلو سه جلی (هغه جلکۍ چې واده نه وي) باید غوره په غاړه



د سپينو زرو غاړه کۍ چې د ډېر (کوالټي) کړيو
روپيو له پې زرگران جوړوي ، د کليو ښځې يې د
دود له مخې په ميند استعمالوي

نه کړي. دغوړي (غاړي) ډولو نه اوجوړښت ښېلا بېل دی، مشهورې
یې دغجري ورو پېيو غوړه، مشکنېيو، گېنگړيو اودزر تارو غوړې په
نومونو سره يادېږي، په دغو ډولو نو کې د روپېيو اوگېنگړيو غوړي
په کليواو بانډو کې زيات رواج لري، دعنعني په خلاف د مشکنېيو (مريو)
او زر تارو (تېلو) غوړې کوچنۍ جلکۍ او پېغلې دځان له پاره په خپلو
گوتو اوستن سره جوړوي، کله چې د مشکنېيو اوزر تارو څخه غوړې په
ښکلي ډول جوړې او سکوی کړي بيا يې په ډېره مينه تر خپلو
د نګو اوسپېنو ملا اوغاړو تړي اوښايست يې ورسره يو په دوه کېږي.

د روپېيو اوگېنگړيو غوړي لکه چې پورته وويل شول په منگلو
کې تر هغه وخته پورې جلکۍ اوخلو سه پېغلې په غاړه کولای نه شي
څو چې واده شوې نه وي کله چې د يوې پېغلې واده تيار شي اود ناوې
په ښه سره ډولي او سينگار کېږي په د غه وخت کې د نورې گانې
سره په څنگ کې د روپېيو اوگېنگړيو غوړې په غاړه ورپورې کوي، له
دې پسول سره پښتنه ناوې ډېره مينه لري اوپه استعمال سره يې ډېره ښکلې
معلومېږي، د ناوې داگانه د مشکنېيو اوزرتارو له غوړو نه دا توپېر
لري چې داپه کورو نوکې نه جوړېږي بلکې زرگران يې د سپينو
زرو له روپېيو نه جوړه وي، په ځينو وختو کې دا پسول د شالو
سپينو روپېيو اود نورو لوړو بيو لرونکو زرو نه جوړيده.

غوړې دوې برخې لري پاسنۍ برخه چې تقريباً د پنځلسو او لسو
سانتيو په اندازه پلن والي اود يوې لوېشتې په اندازه اوږد والی
لري، دې برخې ته د غوړې تخت اوغولی وايي چې څوتوتې څنگ په څنگ
په ډېر ښکلي اوهنري ډول زرگران سره څخوي، د دغوتوتو په منځ
کې رنگينه غټ غټ غمي هم د ښکلا لپاره په کې اېښودل کېږي
دد غو توتو څنگو نه د وړووړ روڅخو په واسطه چې دوی ورته
وربشې وايي سره کلکېږي، دا او يې توتې اوڅخې له سپينو زرو نه
جوړوي، په اوسنيو وختو نو کې يې له نورو ارځانو فلزاتو نه هم جوړې
وي او پر مخ باندې يې د زرواوبه ورکوي، د غوړې لاندې برخه د تخت
اوغولي نه مخ ښکته پېيل کېږي، دد ريو سانتيو په اندازه شل د يرش دانې

دمیزیو کتابونه ښکلي په ښکلي رنګونو بودوی ددغو میزیو سرو ته ورته پورته ستوري لري.

کړي غجری، روپۍ او غیرانونه ورا چوي، که غجرۍ روپۍ او غیر-
انو نه نه وی نو د سپینو زرو گنگړی ور اچوي، په دې ډول سره دغوړۍ
لمن ډیره ښکلې جوړوي، دغوړۍ لاندنۍ برخه دغوړۍ
د پیڅې په نوم سره هم یادوي. په کلیوال او بانډوکې خوار او بیوزله
خلک مجبور دي چې دواده د ملاماتو ونکې دودد زیات تولګښتو-
نو تر ښکلي خپلو زیاتو غوړۍ او غاړه کۍ د ښارونو د زرګرانو
له دکانونو څخه په لوړه بیه واخلی. د کلیو او ښار نو ښځې له دې
ګانې سره لکه چې د منځه سوو ویل ډېره مینه لري او په خورا
خوشالۍ سره یې استعمال لوي، د پښتو ولسي ادب ګیله ی کې د ې
ګانې ته هم ځای ورکړ شوی چې په سندرو او ټپونو کې یې
داسې ستاینه په خوښۍ سره تر سره کیږي:

**۱-سندروکې:**

سپینه غوړه (۱) دې ترغوړه (۲)

لکه د ښلې خوله (۳) ووړه (٤) تاله (٥) وینه

سپینه غوړه دې تر غوړه

لکه زېړ غوړی (٦) کچیر نوست (۷) په کړ نګو نه

د کوتې ور (۸) دې مخو مخ (۹) دی

د غوړه کۍ تو یز (۱۰) د کې اشار تو نه

د غوړ کې په پړک رو څیجه

چې دچورګل په پر و غوڅ نه شي جانانه

سپینه غوړه دې ترغوړه

لکه کتوه په مستو لړ لې وینه

(۱) غاړ کۍ (۲) دانسان غاړه (۳) خوا ته (٤) واوره (٥)
تا له (٦) ژیړ غاړی (۷) ناست (۸) دره، دروازه (۹) مخامخ
(۱۰) تاویز



دمشکنیو، زر تارو او وریښمو غاړه، (غاړه کړه) چې دکلیو او بانډو پېغلې يې تر خپلو دنګو غاړو تړي

## ۴- پا مونو کی:

په نریو پو نو (۱۱) ښی کدم یې ښیو له (ښیا له) کي
پړک یې نری غوړه کی
دغره د سر سې سایي (۱۲) کړي
پړک یې نری غوړه کي
پرې به دې نه پردم په کیږدی کې ښنیاورې
پړک یې نری غوړه کی
په نریو پو نو ښی کدم یې ښیو له کی
پړک یې نری غوړه کی

*　　*　　*

غوړه سې پند په پنډ پرته ووړه (۱۳) او لونه (۱٤)
سپینه و یجره به لتوم که لولی (۱۵) و ینه
په دیدن دوسره دمه کیږي
سپینه ویجره به لتوم که لولي وینه
لکه رنځور په امسو (۱٦) وو خلی (۱۷) کدمونه
سپینه و یجره به لتوم که لولی وینه
غوړه سې پند په پند پرته ووړه لولونه
سپینه و یجره به لتوم که لولی وینه



---

(۱۱) پولو، پا نو (۱۲) صحیح (۱۳) واړه (۱٤) لا او نه (۱۵) لا لی (۱٦) امسا (۱۷) و اخلی . –

# ټنډي پروني

په کلیو او بانډو کې د ښا یسه ګانه د ځینې نورو پسول په خلاف هغه پیغلې او جلکۍ چې واده شوې نه وي په تندله کوي. مېرمنې چې واده شوې وي او تورې بېچکې (پېچکې) یې اړولې وي د هغې عنعنې له مخې چې په منګلو کې د پلر وا و نیکو لـه وخت نه رواج ده داوربل د پاسه یې نه شي راځوړند کولای، دا ځکه چې اوربل د ځنو په شان او بل (جوړول) د ښځې توب نښه ده. ددې ګانې جوړښت داسې دی: زرګران د لاس د ورغوي یا د مخ د لېدود ګړدې هېنداري په شان د سپینو زرو او یا نورو ارځانو فلز-

اتو څخه چې د زر واوبه يې ورکړې وي د روپۍ تخت او غولۍ
جوړ وي، د روپۍ د غولۍ د پاسه د ځپل هنر په زور د هغې مخ په
ډېر ښکلي ډول سره تيار وي، دا شان د روپۍ پر مخ باندې
ډول ډول رنګينه غمي د پاسه ايښې دي. د روپۍ څنډې او ګرد-
چاپېره (چارچاپېره) لمنې داسې جوړ وي چې شا وخوا ته يې
د څلورو او پنځو سانتيو په اندازه ځنځيري مزي مخ ښکته پرې را-
څوړند وي. د دغو مزيو په سر وکې د زياتې ښکلا او ښايست
له پاره د زرو غوټې او ګلان په کې په خاص اندازسره اچول
کېږي چې د دغو غوټو او ګلانو په ورکولو سره ډېره
زياته ښکلې کېږي، کله کله د غوټو او ګلانو پر ځای
پټر کړي (کونډه) غرانونه د مزيو په سر کې ځلکېږي
يعنې زرګران يې پرې کوشېر کوي. روپۍ د غولۍ په پاسني
سر کې يو چنګك لري، د روپۍ د غه چنګك د سر د څنګې او څټ
په ويښتانو کې بنديږي، سربېره پردې چې زرګران د ټيټې
روپۍ په ډېر ښايسته ډول جوړ وي په کليو او باندو کې
يې پېغلې او جلکۍ د مشکنيو (مريو، موره) په ورا چولو سره
چې د وی ورا باندې ږو هېږي نور هم ښکلې کوي، سربېره
پر دې د تڼۍ د روپۍ د څنډو نه نيولې تر غوږ وپورې دواړو
خوا وته جلکۍ نورې کتار کړې روپۍ چې په يوه مزي کې يې
پېيلې وي ور سره يو ځای کوي چې دې ته دوی بېره روپۍ وايي
، همدا شان په کليو او باندو کې پېغلې
او جلکۍ ځای په ځای د مشکنيو څو نډې هم پرې را څوړند
کوي چې روپۍ لا ور سره ښايسته کېږي. دا پښتنې ګاڼه د پښتو
ولسي ادب په ورشو کې ځانته بېره او مړه برخه لري چې په
سندرو او ټپو نو کې يې ستاينه داسې کوي.

## ۱ ـ لنډۍ یو کۍ :

د جلکۍ ذرۍ روپۍ په تنکه و
سینه منځ روپۍ یې ذسه (نیسه) پهغوښونه (۱)
روپۍ سې وو ړه و (۲) یوه روپۍ دو (۳)
کلمه دوره (٤) پهوربل سزه کوینه
جلکۍ په گورکې ازموند (٥) وکۍ
روپۍ سې کورور بل سې خوورې (٦) زړوینه
په تنکه یې سپینه روپۍ زونگۍ (۷)
جلکۍ دخیو له (۸) کدمېږدي یور (۹) تهورشینه
نوره سې ته واله ولید لې
روپۍ دې جگه کهچې خول (۱۰) دې وو ینه
ټیک (*) پر تندي پېز مون په شنله و
او ږۍ پهغوړه د جلکۍ سزه کو ینه
روپۍ دې تو لې شې ځلیږې
د منځ روپۍ دې په زړگې و یشتلی یمه
روپۍ دې بیا پهمخ خورې کړی
لکه نیازي چې رمې وشړي په غر ونه ـ

---

(۱) غاښونه (۲) واړه (۳) ده (٤) کلمهداره (٥) ارما ن (٦) خاوري (۷) زانگۍ (۸) خیا له (۹) یار (۱۰) خال (*) ښاغلی حبیب الله ـ رفیع د لمر مجلې په ټېلا بېلو گڼو کې د پښتنې پسول په بر خه کې غوره او پهزړه پورې سواد خپاره کړي دي ، چې د فولکلور له خیړونکو سره زیاته مرسته کوي او دا فولکلوري سواد یې دار زښت وړ گڼل کیږي





د ټیکې ساده روني (ټیکک) چې کلیوالې ښځلې یې
د ښایست له پاره د ښچکو (ښچکو) د پاره ځوړندوي

روپۍ (*) کلد وري (۱) مزه دوري (۲)
کلمه‌دوره په‌اوربل مزه کو ينه
روپۍ څوك څه کوي جا نا نه
کلمه دوره په اوربل مزه کو ينه
* * *

## ۲ - پامو نوکی :

د شاه ليلى په وربل زو نګى (۳)او و ګيره (٤) روپۍ
د شاه ليلى
چې روو نېږي (۵) لوس دي روکه (٦)
د شاه ليلى
چې پنا کيږي مخ رو و ړه وه (۷) سينه
د شاه ليلى
د شاه ليلى په وربل زونګى اوو ګيره روپۍ
د شاه ليلى
* * *

---

(*) د منګلو په کليو او بانړو کې پېغلى او پېغلکې جلکى د ځان جوړولو (ډولى کولو) او سينګار له پاره له نورپسول او کاليو سره يوځاى کله کله دروپيو اوپتر کړيو غرانونو څخه پيڅه جوړوي. يعنى درخت په يوه‌اوږ ده تو ته‌چې دوه‌متره‌اوږ دوالى او يوې لوېشتې په اندازه سوروړي‌دا پتر کړي‌غرانو نه او شلې روپۍ په کتارو کتار وددي تو تې پر مخ تک وهى ، دادرخت‌توته‌چې له‌رو پيو ډکه کړي دتکري په پيڅه‌اولمن يې ګنډي يااورپور ې کوي د يته پيڅه‌وايې ، نو پيڅه بې له‌روپيو نه له‌ورېښمنو او زرتارونه هم په کليو او بانړوکې جنکى ځانته د ښايست‌او ډول له پاره جوړوي.

(۱) کلداري (۲) مزه‌داري (۳) زانګى (٤) اوا ګيره (۵) روا نيږي
(٦) را که (۷) را وړه وه

تیك دې په جبین دی
داد وې دې سر کې شنلې مخ دې سپین دی
گو درته غم رو پسې (۸) رو شه
داد وې دې سر کې شنلې مخ دې سپین دی
گرې مې دوه دې نرۍ مله (ملیه) مې مو تو ینه (۹)
داد وې دې سر کې شنلې مخ دې سپین دی
تیك دې په جبین دی
داد وې دې سر کې شنلې مخ دې سپین دی

***

په وربل کې مې رو پیو کتو رونه (۱۰)
مو ته (۱۱) ننگروري (۱۲) گلو نه روو ره (۱۳) جا نا نه
یمو (۱٤) په سر تو ره تېکر ییه! (۱۵)
مو ته ننگروري گلو نه رو و ره جا نا نه
ور بېدې نه کم دخو نو نو (۱٦) په شو لو نه
مو ته ننگروري گلو نه رو وره جا نا نه
په وربل کې مې رو پیو کتو رونه
مو ته ننگروري گلو نه رووره جا نا نه

***

وو وړه (۱۷) رو ووو ړه لو نگینه
چې دې وربل روپۍ دې گڼې و ډې شینه
مسو پري (مسافري) دې ډېره وکړه
چې دې ور بل روپۍ دې گڼې و ډې شینه
په زړه زو لېمه (۱۸) ووړ کیه (هلکه) نه دې یود یدمه (۱۹)
چې دې ور بل روپۍ دې گڼې و ډې شینه

---

(۸) را پسې (۹) ما تو ینه (۱۰) کتا رو نه (۱۱) ما ته
(۱۲) ننگراري (۱۳) راوړه (۱٤) زما (۱۵) تکریه ! (۱٦) خا نا نو
(۱۷) وا وړه (۱۸) ظا لمه (۱۹) یاد یدمه

ووو ړه، رو ووو ړه (۲۰) لو نګینه

چې دې وربل روپۍ دې ګړې ودې شینه

* * *

بند که تو ویزو نه (۲۱) لیلو

سپینې روپۍ دې په وربل ویی (۲۲) تا لو نه لیلو

په جګو غرو دې خدای نظر دی

سپینې روپۍ دې په وربل ویې تا لو نه لیلو

په سر یې ووورې (۲۳) په لمن زیړې ګلو نه

سپینې روپۍ دې په وربل ویی تا لو نه لیلو

بند که تو ویز و نه لیلو

سپینې روپۍ دې په وربل ویی تا لو نه لیلو

* * *

راوړه پنیرې ـ شامست ګلو نه ـ توره لونګی دمارو پی ـ چونی له ځینه ـ راوړه پنیري ګلونه ـ ژاړې مازدیګردی ـ شامست ګلو نه تور لونګی ـ له باغه ووزه دبا غچو وکړه سیلو نه ـ شامست ګلو نه راوړه پنیري ګلونه توره لونګی دما روپۍ، چونی له ځینه (*)

* * *



---

(۲۰) راواوړه (۲۱) تا ویزونه (۲۲) وهی (۲۳) واورې .

(*) پښتنی سندرې دوهم ټوک .

# لښتۍ

په کلیو او بانډو کې داګانه ښځې ، پېغلې ، ناوې او جلکۍ په مینه سره د ښنا یست او ډول له پاره استعمالوي. په کلیو او بانډو کې لښتۍ په دوه ډوله دي. یو ډول ساده لښتۍ چې دوی یې سکڼې بولي دا به یوازې نرانو (سړیو، څوانانو) غوږ ته ا- چولې چې په اوسني وخت کې یې رواج ډېر شوی خو سره له دې څوانانغوږ ونه ورته سور وي کوی اودا د زرو نه جوړ شوی



د غوږ د انډيو بيلې بيلې بڼې چې ښځې او پيغلې يې
دښول او سينګار د پاره په مينه استعمالوي

سکنې په کې اچوی (۱)، بل ډول هغه ښکلي او ښېږې لښتۍ دی چې ښځې یې د ښایست لپاره په غوږ وکې اچوی، ددې لپاره چې په لښتیو څه ر ناوا چول شی په و رو ستنه ډ ول یې په خو لنډ و تکیو کې څېړ و :

۱ – هغه لښتۍ چې په کلیو او بانډو کې یې ځوا نان، هلکان اوسړي په غوږ وکې اچو ي د هغو لښتیو او ګانې نه چې ښځې، پیغلې اوجلکۍ یې د ډ ول او سینګا ر لپاره په غوږ و کې اچوي توپیر لري . د ډرا نود غوږ لښتۍ د سرو اوسپینو زر وڅخه ساده جوړیږي او شکل یې د کړې په څېر ګر د ! اودا یروي دی اودوی ور نه لکه چې پور ته موږ یل سکنې وا یی خوا و س یې رواج بیخي کم اوورك شوی دی، خو پوو نده او کو چیا ن یې اوس هم په سینه استعما لو ي .

۲ – د ښځو، پیغلو او جلکیو د ا ګا نې ځا نته ځا نګړ ې بڼې او جوړ ښتو نه لري . زرګران یې د خپل کسب او هنر په زور له سرو او سپینو زرو او یا نورو فلزا تو څخه چې پر مخ یې د زروا و بهور کړې و ی د پلورلو د پاره جوړوي، د کلیو او بانډ و خلك یې دو اده د دوډ د پوره کو لو له پاره په لو ړ قیمت او بیه اخلی، د ښځینه لښتیو بڼه ډیره په زړه پو رې او ښایسته ده، د سر په برخه کې چنګك لری چې د غو ږو د پو خکې (پستکی) سو روي ته ورلو یږي، په چنګک پسې د لښتۍ غو لی پیل کیږي د غو لی

---

(۱) په تار یخي لحا ظ لښتۍ ځا نته ځا نګړ ې څېړ نه غواړي چې څنګه دود شوې دي . د تار یخي بېلو بېلو شوا هد وا و دور ود سیاسی وضعې له امله چې ولې ډرا نو لښتۍ غوږ وته اچولې او اوس یې دود نشته یوه بله ځانګړ ې څېړ نه غواړي چې د تار یخي دورو له مخې با یدو څېړ ل شی خو سره له دې داد غلامی دد ورې نښه ګڼل کیږي، موږ د موضوع دا رتبا ط له امله دلته پرې خبر ې نه کوو .

نه را و رو سته د نر يو مز يو کړ ي چې يو ا و بل کې سر ه ښتې اوخښې وي جو ړ يږي ، د دغو مز يو سر و ته د ګل په ډېرد زرو غو ټې او څو نډ ي چې ډېرواړه وي و راچوي ، ښتي په دغو غو ټو ختمېږي اولمن ورته وا يي ، خو سر بېره پر د ې زرګرانيې د ېږو الې او ښايست لپاره بيا دمزيو کړ ې ورته جوړ- و ي او دا د زروغوټي يې سر ته و راچوي چې ښتي پر ې ښکلې شي ·

پرد ې سر بېره ښتي په نورو ښکليو ډولو نو هم جوړ يږي ،زر ګران دخپل نوم او شهرت د پاره ډېر ز يا ت ربړ او کو ښښ په ځان تېروي او ډول ډول ښتي دخرڅلاو او ګټې له پاره جوړوي· په پښتو ولسي ادب کې يې يادونه داسې راغلې ده :

## ۱ ـ لنډ يو کی :

ښتي مې وې په غوږ مې نه کړې
اوس مې يو د يږي (۱) دروپېو کتورونه
يادا چې : ښتي مې وې په غوږ مې نه کړې
اوس مې يو د يږي دښتيو کتور ونه

* * *

## ۲ ـ پا موونو کی :

ښتي مې ښې جوړې که زر ګر ه
زه دې ځلورو ورونو خوريم ښيو ه ګره
ودې ويښتم پوړ ته دې نه کړم
زه دې ځلورو ورونو خوريم ښيوه ګره
ځلك و يښتلي مرغۍ زر پوړته کوينه
زه دې ځلورو ورونو خوريم ښيوه ګره
ښتي مې ښې جو ړې که ز ر ګره
زه دې ځلورو ورونو خوريم ښيو ګره

* * *

---

(۱) ياد يږي

سور پېزمون (۲) په جلبو نه ـ وی‌مو پېژني که نه

لښتی‌ مې لنډه * يوره‌مو پېژنی که نه * سردوره يوره

ټوټې ټوټی زړه به را ټول کم

لښتی‌ مې لنډه * يوره‌مو پېژني که نه* سردوره (۳) يوره

راټول به نه کم په جانان پروته (٤) لوسو نه (۵)

لښتی‌ مې لنډه يوره مو پېژني که نه سر دوره يوره

سور پېزمون په جلبو نه * وی مو پېژني که نه

لښتی مې لنډه* يوره مو پېژني که نه*سردوره يوره

* * *

لښتی‌ مې بند په بند پرتې ووره (واړه) لا لونه

سپینې ویجرې به لټوم که یار مې وینه

اخر به خاورې شې صبر ته

سپینې ویجرې به لټوم که یار مې وینه

که هر څودې په ملکو وګرز ومه

سپینې ویجرې به لټوم که یار مې وینه

لښتی مې بند په بند پرتې ووره لا لونه

سپینې ویجرې به لټوم که یار مې وینه



(۲) پېزوان (۳) سرداره (٤) پراته، (۵) لاسو نه

# ځینځرونه

دا پښتنې ښکلې پسول په کليو او بانډو کې مېړه و ښې ښځې او ناوې استعمالوي ، جلکۍ او خلوسه پېغلې چې واده شوې نه وي ددې ګانې استعمال ددود او عنعنې له مخې پرځای کولای نشي خو یوازې یې دواده په ورځو کې چې دهلک د کور له لوري دجلکۍ کور ته ددوستو اوورا بانو په نومو رځی نو یې خلو سه پېغلې او جلکۍ په سرکې مخ ښکسته په ولیو او دمټو په سروکې را اچوي.

دا ګانه دواده ګانه ده او دواده په ورځ ناوې ته د نورې ګانې سره یو ځای کیږي، نو ځکه یې جلکۍ او خاو سه پېغلې نه شي استعمالولی دا ښکلې ګانه زرګران دخالصو سپینو زرونه په ډیر مهارت او






دسپینو زرو ځنځیرونه چې زرګران یې په ډېر ښکلي
او ښایسته ډول جوړوي دکېلو او باڼو میرمنې یې
د دود له مخې په سر کې را ځوړندوي او د مټو ترسرو
رارسېږي .

دخپل کسب او هنر په کمال سره جوړوي. هرڅوک چې ورته اړ او احتیاج لري هغه یې په لوړ قیمت او بیه ترې اخلي. ځنځیرونه د لښتیو په شان په پاسنۍ سرکې یو نری چنګک لري د چنګک سره څیرمه د مثلث په څیر یوه درې کونجې برخه لري چې له سپینو زرو څخه جوړیږي او پرمخ باندې یې رنګینه غمی چې لوړه بیه لري ایښودل کیږي او دځینځیر تخت ورته وایی، له تخت وروسته دځنځیر لښتې او بیل بیل مزي شروع کیږي او سروته یې دزروغوټې وراچول کیږي، دغو مزیو او لښتو ته چې دوی ورته دځینځیره مزي وایی سروته یې ګینګړي ( واړه پاولی ) او کوچنۍ روپۍ چې ښکلې جوړې شوې وي هم وراچوي او ځینځیر ډیر ښکلی ورسره معلومیږي، ځینځیرونه څوڅو پړکونه او لړونه لري،

دغوغوټو او ګلانو نه وروسته دځنځیره د مزیو او لښتیو بل پړک شروع کیږي، د هر پړک اوږدوالی پنځو او شلو و سانتیو ته رسیږي او په سروکې یې خامخا غوټۍ او روپۍ د ښکلا د پاره په زیات مهارت سره وراچول کیږي. لکه چې د مخه مو وویل ځنځیرونه د واده په ورځ د پښتنو د دود سره سم د ناوې په سرکې دغوږ د پاسه را څوړندوي او ځنځیرونه د ناوې تر مټو پورې رارسیږي پښتنه پیغله چې ناوې شوې ده د نورې ګانې په ډولي کیدو او ځنځیرو په سینګار بدو سره لا ډیره ښکلې کیږي، د پښتو ولسی ادب په زرغونه ورشوکې یې ستاینه داسې راغلې ده :

**۱ - سندرو کی :**

د ورورخو زه مې په لوړ دو (۱)
داسور ګړی په ځینځیر وور خیجو مه
مخو مخ (۲) مه روته (۳) در پیږه
دځینځیره غوټې مې ستر ګې بریښو ینه
ز رګوره پوس (٤) په د کون (٥) کینه
د تاج محمد د ښځې ګز که ځینځیروزه

---

(۱) هه (۲) مخامخ (۳) راته (٤) پاس (٥) دکان

په کوته سر که را د ننه
په کتزانگی توري زلفي سپین څېنځېرونه
د یوې ته سمه ودرېږه
چې مسو پر (٦) لولی دی گز کی څېنځېرونه
* * *
## ۲- پامونوکی
د بر کلی زرگره د بر
یمو (٧) خېولي اور بل ته جوړ که څېنځېرونه د بر
سورې مې ډېرې در ته وکړې
یمو خېولي اور بل ته جوړ که څېنځېرونه د بر
د خاوروزور وغږ دې ونه کړسینه
یمو خېولي اور بل ته جوړ که څېنځېرونه د بر
د بر کلی زرگره د بر
یمو خېولي اور بل ته جوړ که څېنځېرونه د بر
* * *
سپین دې څېنځېرونه
خېولي اور بل دې جوړ دی ولونه ولونه
ستا د بدن په تمه تمه
خېولي اور بل دې جوړ دی ولو ولونه
له ډېره غمه لکه دروی وچه شومه
خېولي اور بل دې جوړ دی ولونه ولونه
سپین دې څېنځېرونه
خېولي اور بل دې جوړ دی ولو له ولونه
* * *
یو تیک مې دې جوړ کړی الوول په څېنځېرونه
دې ور څو په سرونم
تیک دې بو د شو (٨) خول (٩) دې وریر دی
دې ورڅو په سرونه

---

(٦) مسافر (٧) زما (٨) باد شاه، پاچا (٩) خال

د الو نگین دې رسالدور (١٠) په سخکې ښېنه
دې ورځو په سرو نه
یو ټیک مې دې جوړ کړی الوول په ځینځیرو نه
دې و رځو په سرو نه

* * *

یمو خیولي اوربل ته جوړ که ځینځیرو نه
و ی وی زرگره یوره
چې کبر جن ا شنو خبر یږي
و ی وی زرگره یوره
زما به زنې په ململ تړلې و ینه
و ی وی زرگره یوره
یمو خیولي اوربل ته جوړ که ځینځیرو نه
وی وی زرگره یوره



(١٠) رسالدار .



زرګران د اګاڼه (اوړې) له سرو، سپينو او نورو ارځانو فلزاتو څخه جوړ وي، ددې ګاڼې جوړښت داسې دی چې د سپينو او سرو زرو ساده ټوټه را اخلي (*) او پرمخ باندې يې ښکلې رخې او ګلان انځور کوي . دا شان ګله ګله ددې پسول په څنډه و باندې ځای په ځای غمي هم لګوي . د کلېو او باڼو ښځې يې د ټول او سينګار د پاره د غاړې (غاړه کی) د روپۍ پر ځای په غاړه کوي . زرګران د ووړی د شولې لمن ته ګله ګله پتر کړي غرانونه او د زر-و غوټې وراچوي او دې ټول ووړی ته ښېره ووړی وايي .

---

(*) دا ساده ټوټه د نوې مياشتې د قوس په څېر کږه پرېکوي

وورې چې لمن ونه لرياو خالي غولي يې ښکلی شوی وي ساده ووړی يې بولي .
د پښتو ادب په زرغونه ورشوکې يې يادونه داسې په زړه پورې ډول سره شوې ده .

## ۱ ـ په سندرو کې :

ټيك په تندي پيز مون (۱) په شنه و
وورې په غاړه دچلکی مزه کوينه
خدای خودې بله پړده (۲) وکه
يمو له غوړې (۳) وورې مه کاږه جا نانه
مو ر يې په کلي دروبزې کې
لورېيې چارك وورې په غوړه گرزوينه
وورې په غوړه چلکی لوړه (٤)
پر ېږده چې لوړه ولمنه به چيرې وينه
وورې دغوړې بند يو ونه (٥)
زه بند يو ونه دا شنو (٦) دغوړې يمه
وورې ته ډډ ورکړه زر گوره
زه دخلورو ورونو خور يم کله رمنه
يومې (۷) ته غوټه دگر يوون (۸) که
يومې وورې که چې دې تو و (۹) له غوړې شمه

* * *

## ۲ـ پامونو کې :

موته (۱۰) ډډه وورې جوړه که شين غمی په کېږده
مرغلرې ترې چوپيره (۱۱) که لوس روکه (۱۲) جانانه
پوس (۱۳) دې اسمون (۱٤) ستور يو ته کسه (۱۵)
مرغلرې ترچو پيره که لوس روکه جانانه

---

(۱) پيزوان (۲) پرده (۳) غاړې (٤) لاړه (۵) بند يوانه (٦) اشنا
(۷) يا مې (۸) گر يوان (۹) تاو (۱۰) ماته (۱۱) چا پيره (۱۲) راکه
(۱۳) پاس (۱٤) آسمان (۱۵) گوره

پرتو (۱۶) مې دومره دې دسپينې خولې پورونه
مرغلرې ترڅو پېره که اوس روکه جانانه
موته ډډه ووړى جوړه که شين غمى په کښېږده
مرغلرې ترڅو پېره که اوس روکه جانانه

* * *

څه تنکى پسرلى دى ووړى په ډنډر موتې (۱۷) شوې
لوګرته کډې موتې شوې
دومره به بل وطن ته لوړ شم    لوګرته کډې موتې شوې
چه د پسرلي منډ تې ګل شي روبه (۱۸) شمه
لوګرته کډې موتې شوې
څې تنکى پسرلى دى ووړى په ډنډر موتې شوې
لوګرته کډې موتې شوې

* * *

** دتاله ولويدم له تاله    *ووړى مې په ډنډر ماته شوه
دغسې ولويږې چې ملا دې ماته شينه    *ولويدم له تاله .
ستا به د ګلو دوبران تېر شي
ولويدم له تاله ووړى په ډنډر ماته شوه
زما به پاتې شي د زړه سوي داغونه
ولويدم له تاله ووړى په ډنډر ماته شوه
دتاله ولويدم له تاله *    ووړى مې په ډنډر ماته شوه
دغسې ولويږې چې ملا دې ماته شينه    * ولويدم له تاله .

* * *

جوړه دې ووړى کړه بروبره (برابره) ور مېږه کې
خپې زنګوې خبرې نه کې
په زړه کې ډېر را باندګران يې    خپې زنګوې خبرې نه کې
دخلکو شرمه دې په خوله نه يادومه    خپې زنګوې خبرې نه کې
جوړه دې ووړى کړه برو بره ور مېږه کې
خپې زنګوې خبرې نه کې

---

(۱۶) تا (۱۷) ماتې (۱۸) رابه –
** پښتني سندرې د وهم توك .





ساده و وږکه (اوږکه)

شاه ووړی دونې (۱) دو نې خدا یه ور ور سې رووانې (۲)
خلك په چول کې تالا کیږي خدایه ور ور سې روو لې
زه دې اشنودسینې لو ندې (۳) تالا شو مه خدایه ورورسې روولې
شاه و و ړی دو نې دو نې خدا یه ور ور سې ر وو لې

* * *

ایلو (٤) ووړی د کو نجك دوره (٥) دو (٦) څلو ر دې روپی
چې سې د تـو رو زلفو وا رو څلو ر دې روپی
عالم سې یار ووبې پروا بهگر زېدمه څلور د ې رو پی
ایلو ووړی د کو نجك دوره دو څلو ر دې روپی

* * *

شاه وو ړی دونې دونې خدا یه یو ر سې (۷) رو ولې
ا یمون (۸) دې شه روته (۹) سوا وم دی خدا یه یورسې روولې
په ببره پگړی دې مه وا یه لو سو نه خدا یه یو رسې رو ولې
شاه ووړی دونی دونې خدا یه یورسې روو لې

* * *

*ایلی اوړی دې کنجك داره څېړی دې څلور
تن سې د شنې نکروزې پانه څېړی دې څلور
ظاهر تازه د ننه رنگ په وینو یمه څېړی دې څلور
ایلی اوړی دې کنجك داره څېړی دې څلور

---

(۱) دانې (۲) راولې (۳) لاندې (٤) ایلی (٥) داره (٦) ده
(۷) یارسې (۸) ایمان (۹) را ته (۱۰) لاسو نه
(*) پښتنی سند ر ې دو هم توك .

# لالی پیلی تتلی

داگانهٔ** پهٔ کلیو او بانډو کې د کاله او کهول مشرې ښځې خپلې خور اولو رته چې واده شوې وي جوړوي اودناو یټوب پهٔ ورځ یې د نورې پښتنې ګانې سره یوځای دډول او سینګار لپاره دهغې په ټټرورپورې کوي. دا پسول دوی پخپله داسې جوړ وي: له بازارو نوخخه سل اوشپږ شله دانې پټر کړي (کونډه کړي)

---

** کله کله پهٔ سنګلو کې د رو پیو ټټر ته چې د سپینو شالو پټر (کو نډه) کړو غېجر یورو پیو اوغرانو نو نه یې جوړ وی ګنډه هم ورته وا یی ·



٦٦٩

د سپينو پېټر (کوټلو) کړيو روپيو نه جوړ شوی
ټټر چې ګنډل هم ورته وايي

غرا نو نه او که څوك د ير شتمن وي نوځپلي خوراو اور ته سل دا ني
غجرۍ روپۍ پټر کوي. داغرانو نه اوپټر کړي ي رو پۍ چې کاله
تهراوړي، د کاله ميرمنې د ناوې د ټوټود سرونه نيو لي ترنامـه
غوټۍ پورې يوه زړه درخت ټوټه دټټر دجوړيد ودپاره په هغې
نيسي. کله چې دټټر اندازه معلومه شي، ددغې زړې ټوټې لاندې
دوې يادرې نورې زړې ټوټې هم يوځای سره نښلوه او بخيه کوي
کله چې داټوټې سره پهخام کوك او ټلك کلکې کړي بيا يـې
پرمخ باندې پهعمومی ډول سره يوه نوې اوکلکه درخت ټوټـه
د څوسکز يو په واسطه پرې گنډي .

نوې ټوټهخالصه د تور رخت نهور ته پر بکوي، که تور رخت
نهوي نوسره ټوټه يې پهمخ ور کوي چې دې هوا رې ټوټې ته
دټټر مخ وايي ، کله چې دټټر مخ تيار کړي ، له دې وروسته هغه
سل پټر کړې غجرۍ روپۍ او غيرانونه رااخلي شل، شل يا پنځلس
پنځلس دانې گوښې گوښې پهيوه کلك مزي کې پيي . کلهچې
دا غجرۍ روپۍ او غيرانونه په تورو او کلکو مزيو کې سره
وپيي لهدې نهوروسته دغه دروپيو بېل بېل مزي د دې ټوټې پرمخ
له سرنه ترلمنې پورې په بيلو بيلو پړکونو (کتاړونو) سره پرې
گنډي. له دې کبله دې پسول ته د پټر کړيو ر و پيو ټټر يا گنډه
وايي، کله چې دروپيو ټټر تيار کړي نودزياتې ښکلا له پاره يې
پرڅنډو او لمنو باندې دور يښمنو او مشکنيو څونډي هم په خاص
انداز سره وربا ندې پورې کوي. د روپيو ټټر دمتونو په سرو يعنې
دټټر پاسنی برخه او د نرۍ ملا په سر کې يعنی دټټر په لمن کې
دوه نرې درخت مزي يادوې در خت ريتاړې اړي او په دغو ريتاړو
باندې ټټردوليو پهسراودناوې ترملا پرټټر او وجود باندې کلك
تړل کيږي اوناوې يې پرځان کوي . دا گانه په کليو اوبانډو
کې يوازې دناوې لپاره داستعمال جواز اري او دواده لهورځې
نه يې ترهغه وخته پورې چې زړه او رضايې وي په مينه سره
استعمالولی شي . دهغه دودلـه مخې چې پهمنگلو کې ترـ

سره کیږي دا ددوی د لاس جوړ شوی پسول پیغلې او خلوسه جلکی
دوا ده په ورځ د وړا بانړو او خیښو په نوم د ننعنې له مخې
استعما اوي او پرته له دې بې پرتګر کولای نه شي. ټټر د نورې
پښتنې ګانې په شان د پښتو ولسی ادب په لمن کې داسې ستایل
شوی دی :

## ۱ - سندروکی :

په لښتی ټوپ که بیارو (۱) ټوپ که
چې د ټټر ر و پی دې ګڼې و ډې شینه
دا سپین ټټر مې په ټټر دی
خدایه ! کومک روکې (۲) چې ویې ژر بومه
د ګینګړو ډك ټټر پرې ټیټ که
که د شرین یاردې زلکدم وي روغ به شینه
جلکی ټټر روپی په غاړه
ټټر مې یخ ، روپی مې واورې اور وینه
خدای دې په دارې (۳) ځی کې روکه (٤)
چې د ټټر روپی دې ګڼو ډې کمه
سپین ټټر په مخه روغی (٦)
ربه ! (۷) توکت (۸) روکې چې ویې ژر بومه

## ۲ - پامونوکی :

پر ټټر دې سپینې ربی ( روپی )
ته دومره مړه نه یې چې وا چوې رپی
مینه د خدای د رسول شه ده
ته دومره مړه نه یې چې وا چوې رپی
دا نورې مینې بې وفا ټیرې به شینه
ته دومره مړه نه یې چې واچوې رپی
په ټټر دې سپینې رپی
ته دومره مړه نه یې چې واچوې رپی

---

(۱) را (۲) را کې (۳) داسې (٤) ځای (۵) را که (٦) راغی (۷)
خدایه ! (۸) قوت ، طاقت

# لونګین

د منګلو په کانیو او بانډو کې پیغلې او ځلمي د لونګو دانې را اخلي د ستنې د سر په واسطه یې په تارونو او مزیو کې پیيي او د غاړې لونګین ځانته ترې جوړوي او د ښایست دپاره یې د لوړې بیبي د اصیل په شان په ډېره مینه په خپلو سپینو د نګو غاړو کې اچوي او ترسینې پورې یې را رسېږي . کله کله یې مزي اوږدوي او د لونګو لونګین یې تر نامه غوټې پورې را رسېږي

او د نامه پهغوتهیي پهسینه سره ژنگوي دا پهدې مفهوم چې لونگین یې د نامه په غوټۍ زانگي .

د کلیو پېغلې اوجلکۍ د لونگو نه ځانته ډول ډول څونډې او غوټې پهخپلو گوتوجوړوي اوبیا دا څونډې او غوټې دامېل په شان په یوه ځانگړي مزي کې په ښایسته ډول ترتیب کوي د ښکلا او ښایست لپاره یې په غاړه کې پهسینه استعمالوي، لونگین د پښتو ولسی ادب زرغونه ورشو کې ځانته پهزړه پورې ښایسته برخه لري چې پهسندرو اوپاسونو کې داسې ستاینه کېږي :

## ۱ - سندروکې :

لونگین بهدې تولا (۱) شي

لندونې مکه د بازور (۲) په وړو کیو مینه

په سینه یولولی (۳) څویېږي (٤)

زه لونگین لولی دووړه (۵) څویومه (٦)

لوس به دې وتړم په زلفو

په لونگین بهدې وهم چې مړ دې کمه

تهینگه مې مه نیسه پهغېږکې

سبو (سبا) به بوی د لونگین درځخه خینه (۷)

شاه لونگین په ژړو (۹) روغی (۱۰)

موته (۱۱) هیکل په سینه څوی (۱۲) نهروکوینه

که اسویلی کم اوربه ووخلې (۱۳)

د لونگین ورمنې (۱٤) صبر مې دې وینه

د لونگین په لړ روخیجه (۱۵)

بیر ته کو زیږه پاوليو پهکتورونه (۱٦)

لونگین به دې تالاشي

زندانې مه غواړه بې وخته خیرا تونه

---

(۱) تالا (۲) بازار (۳) لالی (٤) ځا یېږي (۵) دوا ړه (٦) ځا یومه
(۷) سبا (۸) ځینه (۹) ژړا (۱۰) را غی (۱۱) ما ته (۱۲) ځا ی (۱۳) واخلې (۱٤) میرمنې (۱۵) را خیژه (۱٦) کتارونه



دلونګو لونګین :

مزې دې وکړې لونګینه

د شاپلي په سینه تل وهې تالونه

دلو نگین په لور را خیژه

موته وورې پهسینه څوی نه روکوینه

تور لونگین روته (۱۷) تاوور (۱۸) که

سپینه سینه نې (۱۹) تور لونګ سزه کوینه

څو نته (۲۰) ستړ لونگین جوړ که

خیول (خیال) به پهته کې بوی بې یې موته روښینه

دلونگین په پړك روخیژه

په پیزمون (۲۱) شپه که سپینه خوا ووخله (۲۲) خرڅونه

دلونگین په لړ روخیژه* شپه په ور بل که خرڅ له خولې غوړه (۲۳) سینه

* * *

## ۲ - پا موئوکی :

لونگین وړې دونې (۲٤) وی په سروشنو

یومې لونګ ژوولی دي - لونگین وړې دونې

گل د گلاب به خدای رونه (۲۵) کی

یومې لونګ ژوولې دي - لونگین وړې دونې

د نوروگلومې بوغچې (۲٦) ویلوړې (۲۷) دینه

یومې لونګ ژوولی دي - لونگین وړې دونې

لونگین وړې دونې

وی په سروشنو

یومې لونګ ژوولی دي

لونگین وړې دونې

* * *

ورو وروبې املە (۲۸) وی دا لونگین وړې دونې

نمو (۲۹) لولی (۳۰) روخینه (۳۱) وی دا بی املهوی وروورو

---

(۱۷) راته (۱۸) تیلر (۱۹) باندې (۲۰) څانته (۲۱) پیزوان (۲۲) واخله (۲۳) غواړه (۲٤) دانې (۲۵) رانه کی (۲٦) باغچې (۲۷) ولاړې (۲۸) بی عمله (۲۹) زما (۳۰) لالی (۳۱) راځینه

دمسو پرو (۳۱) لو یه خدا یه
یمو لو لی روښینه ـ وی دا بې املهوی ورو ورو
سر یې سرو بېردی خو له یې د که له گرځو نه
یمو لو لی روښینهوی دا بې املهوی ورو ورو
ورو ورو بې امله وی دا لو نګین وړې دونې
یمو لو لی روښینه وی دا بې امله وی ورو ورو
* * *
وه سوړې! وو ده (۳۲) غو وړم (۳۳) وو ده
وه زییه (۳٤) پیسې نه شته پیسې
وه سوړې ! یتو سندك رو ړ نګ که
پلو ر (پلار) مې یښې خور ځو نې (۳۵)
لو نګین وړې دونې لی نګین وړې دو نې
* * *
رو تو و (۳٦) شه لو نګینه له ډیرې مینې زړه په سردې گرزومه
ر و تو و شه لو نګینه
په کنهوو (۳۷) رو نه (را نه) پنا یې ر و تو شه لو نګینه
ربدې غو ر مه (*) که چې رنو (۳۸) دې وو ینمه رو تو شه لو نګینه
رو تو و شه لو نګینه له ډیرې مینې زړه په سردې گر ز و مه
رو تو شه لو نګینه
* * *
شاه او ردا ور دی لو نګینه ناوی یې رووړه (۳۹) شاا ورد ی
خو له مې پهخو له کېږده لوی مه شې ناوی یې رووړه شا او ردی
ژ به مې پر یېږده چې گیلې در ته کو ینه ناوی یې رووړه شاه اوردی
شاه اوردی اور دی لو نګینه ناوی یې رووړه شاه اوردی
* * *

---

(۳۱) مسافرو (۳٦) واده (۳۳) غو اړم (۳٤) زو یه (۳۵) خزانې.
(۳۲) راتاو (۳۷) غاښیو (۳۸) رنا (۳۹) راوړه
(*) دلته غو ر مه د لمر دمتر گې او لمر په ماناده ، نه د
گرمی او تاو په ما نا

شاه لیو نی په ور بل کې برګک ګلو نه پرد ینه رو (۴۰) وووړه
(۴۱) لو نګینه په خنګک

ووړ کیه وولې (۴۲) دې خدای مل شه رووووړه لو نګینه په خنګک
چې د رنې خېجی غوږ وروخړ ګړ دونه رووووړه او نګینه په خنګک
شاه لیو نی په ور بل کې برګک ګلو نه پرد ینه رووووړه او نګینه په خنګک

* * *

او نګینه ناوې دې ژوړي (۴۳) چې ور بل سې ورو نو ینه (۴۴)
چې مړ ستون ته یې ور کوز کړم چې و ر بل سې و رو نو ینه
سوړي به و کم چې بندي دې عمر شو مه چې ور بل سې ورو نو ینه
او نګینه ناوې دې ژو ړي چې ور بل سې و ر و نو ینه

* * *

چې سوزد یګر (۴۵) شی سرغی شنو و نو ته ځینه تو لا (۴۶) شوی لو نګینه
د سوز د یګر ز پړ یه لمره! تو لا شوې اې نګینه
په چا و پلوړ (۴۷) یې په چا وولو پدې مینه تو لا شوې لو نګینه
چې سو زد یګر شي سرغی شنو و نو ته ځینه تو لا شوې او نګینه

* * *

پوی یې سو ته نه روخینه لو نګین وړې دو نې
د یدن سې کو رته پسې یو وړ لو نګین وړې د و نې
په کبرجن جا زان سې څون (۴۸) بې کدره کنه لو نګین وړې دو نې
(**) پوې یې سو ته نه روخینه لو نګین وړې د و نې

* * *

---

(۴۰) را (۴۱) واوړه (۴۲) هلې (۴۳) ژاړي (۴۴) ورا نو ینه (۴۵) سازیګر (۴۶) تالا (۴۷) ولاړ (۴۸) څان .
(**) پښتنی سندرې دو هم ټوک .

(*) تور لو نګين توردی په سپين به يې بدل نه کړمه
زما او ستا چې پرې وعده وه په سپين به يې بدل نه کړمه
بېګاه په هغه ځای کې اورولګيد نه په سپين به يې بدل نه کړمه
تو ر لو نګين تو ر د ی په سپين به يې بدل نه کړمه

* * *

ليلی په سپينه خو لګی خو ر که ول د خښيو تو ر لو نګين مل د خښيو
مادر ته وې چې مه که مه که تو ر لو نګين مل د خښيو
او س دې زانګو يې غم کوه بچی راو ړ مه
تو ر لو نګين مل د خښيو
ليلی په سپينه خو لګی خور که ول د خښيو
تو ر لو نګين مل د خښيو (۱)

* * *

ما رو می تو ر د ې لو نګين او ر بل جا لو نه
تـو ره لـو نګی د ې هلکا ن په سرو ينه
ما رو می تو ر دې لو نګين
دا زادی په ناو ې جنګ د ی ما رو می تو ر دې لو نګين
زلمی په مينه کې سرو نه ور کوينه ما رو می تو ر دې لو نګين
(۲) ما ر و می تو ر د ې لو نګين ا و ر بل جا لو نه
تـو ره لـو نګی د ې هلکا ن په سر و نه
ما ر و می تو ر د ې لو نګين

* * *

شين دی زړ ه مې شين دی
شر ين لو لی (۳) سی غو ړ ې (٤) لو نګين دی

---

(*) پښتنی سند ر ې دو هم ټو ك ·
(۱) پښتنی سندر ې دوهم ټوك ·
(۲) پښتنی سند ر ې دو هم ټو ك ·
(۳) لا لی (٤) غا ړ ې .

مخ دې په سپین کې سرخي وا یی
شر ین لولی سې غو ړ ې او نګین دی
لکه خاسه چې په ګلاب و غوړ و ینه
شرین لولی ،ې غو ړ ې لو نګین دی
شین دی زړه سې شین دی
شر ین او لی سې غوړ ې او نګین دی
* * *
یو پلو سې یار او نګین سې په دا بل پلو
لا و ړ و کیه دې پلو را واو ړه
زما دې شین فصل تالا کی لاوړ و کیه دې پلوراواوړه
رب دې تالا که سپینه خوله غو نړ ې بر پټو نه
لا وړ و کیه دې پلو راوا و ړ ه
یو پلو سې یار او نګین سې په دا بل پلو
لا و ړ و کیه دې پلو را واو ړه





دا پښتنی پسول (*) د کليو او بانډوښځې د سينګار او ډول لپاره د نورې ګاڼې په شان په مينه سره په غاړه کې اچوي زرګران يې له سرو او سپينو زه په خاص هنري ډول جوړ وي او په لوړه بيه يې پلوري ، په دې بر سيره کليو والې پيغلې او ښځې يې له مرغلرو او مشکنيو (مورو) څخه په ډول ډول ښو په خاص اوځانګړي ډول هم جوړوي .

دوی يې له غټو مشکنيو ، کونجکو او ګونګړيو څخه هم ځانته د ډول او سينګار له پاره په خپله په يوه مزي کې جوړوي، د کليو ښځې مرغلرې ، مشکنې ، کونجکې اوګونګړې (ګينګړې ، کوچنۍ پاولۍ ) راواخلي په يوه مرغلين او کلپچ مزي کې يې په ښکلي شان سره پيې اوغاړې امېل ترې جوړوي . په کليو کې پيغلې اميلو ته په خپلو ډولونو جوړوي چې ساده او برګ يې ډير مشهور دي ، کله دځان لپاره يې يوازې له مشکنيو ، مرغلرو ،

---

(*) منګل امېل ته منۍ هم وايي .



د سرو زرو امېل چې مېرمنې او پېغلې يې د ښائست
له پاره په زياته مينه استعمالوي

کونجکو او ګونګړ یو نه چې خالص یو شی یې په مزي کې پېيلی
وي دې ته ساده امېل او که دغه شیان یې په ګډه سره داسې پېيلی
وي چې پنځه داني سرغلرې بیالس او پنځلس داني مشکنځې ورپسې لس
دولس داني کونجکې، او بیالس دولس داني ګونګړي په یوه تارکې
وپېيی، له دې وروسته بیا په همدې تارکې پنځه داني سرغلرې،
شپږ داني کونجکې لس داني مشکنځې او څلور داني ګونګړي
وپېيي دې جوړ شوي امېل ته برګ امېل وايي او د کلیو پېغلې یې
په سینه سره ترغاړه وتړي، د زیاتې ښکلا له پاره ځای ځای دوریښمنو
او مشکنځیو غوټې او ځوړندې هم وراچوي چې دا ډول امېل ته بېر
امېل وايي. په پښتو ولسي ادب کې یې یادونه داسې راغلې ده.

## ۱ - سندرو کی؟

امېل د سرو زرو مزه کي
یور (۱) مې غریب دی یمو (۲) نشته امېلونه
امېل د غوړې (۳) جوړ ومه
دا لونګین په سینه ځی (٤) نه روکوینه
امېل د سرو زرو ښه ښکاري
بل چې وربل د پاسه وتو مړی ګلونه
* * *

## ۲ - پامونو کی:

امېل د غوړې جوړ ومه — وی وی زرګره یوره!
سبو (۵) به بل کلی ته ځمه — وی وی زرګره یوره!
ته دې اختر په سبو روښه (٦)
وی وی زرګره یوره
زه به درووژم توري سترګې سره لوسونه
وی وی زرګره یوره

---

(۱) یار (۲) زما (۳) غاړې (٤) ځای (۵) سبا (٦) راشه

اسپل دغو ړي جوړ ومه
وی‌وی زرگره یوره !
سبو به بل کلی ته ځمه
وی وی زرگره یوره !
اسپل دغو ړي جوړ ومه
وی‌وی زرگره یوره !
سبو به بل کلی ته ځمه وی‌وی زرگر یو ره !

* * *

(*) اسپل دې‌غاړې جوړومه
شیرینه جانانه بیگاله‌راشه
نن مې دې یاردې راتلو غږدی
شیرنه جانا نه بیگاله راشه
مخکې بخمل شوې لاروو سپړل گاونه
شیرینه جانانه بیگاله راشه
اسپل دې غاړې جوړ ومه
شیرینه جانانه بیگاله راشه

* * *

اسپلونه جوړومه
رووړه لونگ رووړه (۷)
توپنگه‌مې‌مه نیسه په غېږ کې
رووړه لونگ رووړه
سبا به بوی دلو نگین درځخه ځینه
رووړه لونگ رووړه
اسپلونه جوړ ومه رووړه لونگ رووړه

* * *

جانانه ! گل له باغه‌راوړه زه‌یې پېیمه جوړومه‌اسپلونه

---

(*) پښتني سندرې دوهم توك (۷) راوړه

نه مې خوك ونه مې په كار شو ل
زه بې پېيمه جوړ ومه اسېلو نه
د خېږي پخه شوم كړ نگ ته ولو ېد مه
زه بې پېيمه جوړ ومه اسېلو نه
جا نانه گل له باغه راوړه
زه بې پېيمه جوړ ومه اسېلو نه
* * *
بې تی (۱) نه پېرې (۲) سېتړې وېلوړې (۳) دېنه
اسيلو نه جوړ وينه ياوه سالې خو نه (٤)
يـتو (٥) به د گلو دوران تېرشی
اسيلو نه جوړ وينه ياوه سالې خو نه
يمو (٦) به پو تې (۷) شی دزړه سوې دوغو نه (۸)
اسيلو نه جوړ وينه ياوه سالې خو نه
بې تی نه پېرې سېتړې ويلوړې دېنه
اسيلو نه جوړ وينه ياوه سالې خو نه



(۱) توی ، سيلاب (۲) پورې (۳) ولاړې (٤) خانه (٥) ستا (٦) زما (۷) پاتې (۸) داغونه .

# ګمیخ

دا پښتني ګانه زرګران له سپينو زرو، مسو او نورو فلزاتو څخه د مېخ د سر په شان د سپينې غوټې په څېر جوړوي ، مخ يې ډېر ښوی کوی او له لرې ځليږي، لاندې ژوره خوا يې پټري (کونده) لري چې په دغو پټريو کې کلك او مرغلين مزي اچول کيږي د کليو او بانډو پېغلې ، جلکۍ او ښځې د ډول او سينګار له پاره ګل-مېخې له بازارنه اخلی او بيا يې په يوه کلېچ مزي کې سل او دوه سوه دانې څنګ په څنګ سره اچوي ، د ګل مېخو نه دا جوړ شوي

مږي دخپلو او یوختو نواو کمیسو نو په ړستونو (استونو) باندې
د ټکو نو په واسطه ګلکوي ، داشان د ړستونو له خو اونه نیولې
د ړستونو د لیچو ترسرو پورې د پاسه په بیلو بیلو پړکونو (کتارونو)
پرې ټك وهی. د کلیو او بانډو ښځې د نورې ګانې سره یوځای په
دغه ګانه هم ویاړ کوي او د پښتو ولسی ادب په غوړیدلې ورشو
کې یې ستاینه داسې پرځای شوې ده .

### ۱ - سندروکی :

دګل میخیو دې شر نګا شوه
ماوې پښ ذاستدی تبرګی تیره کوینه
دګل میخیو دې شر نګی شو
ماویل کوتوال دی زوانې را اچوینه
دا ګل میخی به پورې نه کم
مادې اشنادې غمه ډیرزړلی دینه
دګل میخیو پړك دې خورشو
ماوې سپوږمی دغره په سرشو غلې وهینه

* * *

### ۲ - پاموڼوکی :

په ټټر دګل میخی
یمو ږ زوم دومره نردی اوس به واچوي روپی
سرته مې غټه تیږه کېږده
یمو ږ زوم دومره نردی اوس به واچوي روپی
پردی وطن دی یاره نشته بالښتو نه
یمو ږ زوم دومره نردی اوس به واچوي روپی
په ټټر دګل میخی
یمو ږزوم دومره نردی اوس به واچوي روپی

# روپیو کتارونه

په کلیو او بانډو کې پېغلې او پېغلکې جلکۍ پټر کړي غرانونه
او غجرۍ روپۍ چې پلار ، تره ، مشرورور باد کاله کوم بل مشر
ورته راوړې وي. نو داغرانونه او غجرۍ روپۍ دوی (جلکۍ) را اخلي
په یوه سرغلین مزي کې یې شل دېرش یا څلویښت دانې یو ځای سره
پېیي لهدې وروسته یې په خپلو لېو گوتو نځورو (چنارونکو) ختو
(کمیسو) ، درسنتونو د پاسه اوون یا شپږ پږ که ( کتارونه ) ایږدي او
وربانديگنډي یې ، داشان د روپیو کتارونه په خپلو شنو ، زېړو ، سرو
او زرغونو لو یوتکریو (پوړنیو ، زړوکو) په پېڅو او منځ باندې
هم څوڅو کتارونه پورې کوي په پښتو ادب کې یې یادونه داسې
په مینه سره شوې ده :

روپۍ سې وي کټور(۱) سې نه کړې
اوس مې يوه بړې(۲) نه رو پيو کټورو نه
روپۍ دې بيا په کټور و کړې
لکه نيوزي(۳) داو ښو جوړ کۍ کټو رو نه
روپۍ دې بيا په کټور و کړې
لکه نيو زي چې غيلې(٤) و شړې په غرونه

* * *

په تو ر اور بل کې درو پيو کټورو نه ايلو(٥)
وو خله(٦) کډ مو نه ايلو
سپينه تڼۍ دې غو ټۍ دو (٧)
وو خله کډ مو نه ايلو
توري بيچکې دې رسې په پنډه پډ ينه
وو خله کډ مو نه ايلو
په تو ر اور بل کې درو پيو کټورو نه ايلو
و و خله کډ مو نه ايلو

* * *

(*) په اور بل کې مې روپيو کټارو نه
ما ته ننګرارې ګلونه راو ړه جانا نه
د سر ينډې وچه لر ګينه
ما ته ننګرارې ګلونه راو ړه جانا نه
غړدې نرۍ دۍ پرې کوې دوو ړ کيو زړو نه
ما ته ننګرارې ګلونه راو ړه جانا نه
په اور بل کې مې روپيو کټارو نه
ما ته ننګرار ې ګلونه راوړ ه جانا نه

---

(۱) کټار (۲) يادېږي (۳) نيازي (٤) رسې (٥) ايلې (٦) واخله (٧) ده
(*) په فورميک ډول تڼۍ روپۍ سره هم دا پام راشلی .



دا پښتنې پسول زرګران له او سپينو ځلزاتو او نري ځادر
ټوټه د کور تې او بالاپوش د کوړ چنيو ټوټو (سدپ، ګروپ) په
شان ګړ دي جوړ وي، د استعمال له پاره يې په يوه ځنله کې
سوروي کوي، دغوسا ده سپينو ټوټو ته د زياتې ښکلا له پاره
شين، سور، زيړ او نور رنګونه ور کوي د کليو کوچنۍ جلکۍ
او پېغلې يې په خپلو ګوتو رو کميسونو او لويو ټکريو باندې
د کتارونو ياګلونو او سپرغو په څېر ځای په ځای د ښکلا او ښايست
د پاره ټکوهي ، د پښتو ولسي ادب په زرغونه باغ کې يې په
سندرو (اندېو) کې داسې ښکلي ګلان غوړيدلي دي .



پنځه (ستارې):

پنځه به پورې په کمیش کم

زما د یار غېټه نږدې ده راپه شینه

## ۱ - سندروکی :

پټه يې ځی (۱) په ځی پرتې دي
دمينې يو ر (۲) يې نن سبو (۳) رو ښينه (٤)
پټه يې سر ې کميس يې شين دی
زړه خو مې خوړ ين دی په لږ سن نه روښی (۵) مينه



(۱) ځای (۲) يار (۳) سبا (٤) راځينه (۵) نه راځی



د ډانې او پڼې (ستارې) تر منځ یو توپیر هم وجود لري او هغه دا چې ډانې له زړور قو کاغذ و ښخه چې بېلا بېل (شین ، سور ، ژیړ ، زرغون . . .) رنګونه لري، دکاندران یې د خت او کمیس د کوچنیو ټټیو په شان له دغو کاغذو ښخه ګرد دې (ګردۍ) او دایروي جوړ وي ، دا له رنګینه کاغذ و ښخه جوړې شوې د انې د واده په وخت کې د ناوې پلار ګنی کله چې ناوې په کالیو (جامو) ، پسول او ګاڼې سره جوړه او سینګار کړي ، نو د خپلې ناوې د زیاتو ډولی کیدو له پاره د هغې پر مخ ، ټنډې غمبور یو (اننګیو ، بار خو ګانو) او غونډې زنې په سر باندې دا کاغذي ډانې د یو ې سر یښنا کې مادې په واسطه د کتارونو او ګلونو په بڼه سره ور باندې ایږدي ۰

د ناوې پر مخ باندې داشنې ، زرغونې ، سرې او ډول

ډول دانې داسې ځلیږي ته به وایې چې د ګلانو پر مخ پر ځه او د باران ځاځکي پرا ته دي او د ناوې ښکلا ور سره یو په دوه کیږي . د عنعنې له مخې د ناوې په ملګرو اونیږ دې خپلو انو ښځو په مخونو باندې یې د ناوې دخوشالی له پاره هم ا یږ دي ، ځینې پښتانه یې «دړی» بولی :

چې ته مې وران نه کړې شینکی واړه خالونه
بورو ورو دړی مې کیږده
یارمې په ټوکه نه پو هیږي
بورو ورو دړی مې کیږده
ما په خورو زلفو واهه سرور شونه
بورو ورو دړی مې کیږده
چې ته مې وران نه کړې شینکی واړه خالونه
بورو ورو دړی مې کیږده

..........

سرې دانې په کیږده چې ځلیږي
غاټول ورته روبولیء (۱) چې خوشو لیږي (۲)
ترنیمو شپو پورې رونغلې (۳)
غاټول ورته روبولیء چې خوشو لیږي
سکروټې مړې شوې اوس ایږوته نو ستم (٤) یمه
غاټول ورته رو بولیء چې خوشو لیږي
سرې دانې په کیږده چې ځلیږي
غاټول ور ته رو بولیء چې خوشو لیږي

* * *

ټیکری دې دنا وه دانې یې ولاړې
په زنې کې به دې نسم زیړې ګلې
په مشابه او نږدې ټول داسې ویل کیږي :

---

(۱) را بولیء (۲) خوشا لیږي (۳) را نغلې (٤) نا ستم .

ټيکړی مې بناوه دانې يې لاړې
لاړې بابو (بېو) لاړې

جالکی ټيکري پېښې نه ښېسه — لاړې بابو لاړې
که دياری مطلب يې وي وبه درينه — لاړې بابو لاړې
ټيکړی مې بنا وه دانې يې ولاړې — لاړې بابو لاړې

* * *

سخې ته راغله په ښادر يې ستارې دي
په ژړا اژاړ مه سترګې مې سرې دي
خدای به د ې زلفې په لاس راکی
په ژړا ژاړ مه سترګې مې سرې دي
ما ته د ګلی ماشومان دعا ګوينه
په ژړ اژاړ مه سترګې مې سوې دي
سخې ته راغله په ښادر يې ستارې دي
په ژړا ژاړ مه سترګې مې سرې دي

* * *

چې ته مې رنګ نه کړې شينکی وار خالو نه
بې ورو ورو دانې په کېږده
چې عاشقی يې کړې نه وي
بې ورو ورو دانې په کېږده
دزالي په شان يې رېږدي اندامونه
بې ورو ورو دانې په کېږده
چې ته مې رنګ نه کړې شينکی واره خالونه
بې ورو ورو دانې په کېږده

* * *

ټيکری مې ټک وا هه دانې يې ولاړې — بېو ولاړې چې ولاړې
وارمې د تورو زلفو تېر شو — بېو ولاړې چې ولاړې
اوس مې په جرګوا شناخوا له نه راځينه — بېو ولاړې چې ولاړې
ټيکری مې ټک وا هه دانې ولاړې — بېو ولاړې چې ولاړې

# تاویزونه

داګاڼه د پښتنی پسول دېره په زړه پورې برخه ده، د کلیو او بانډو پېغلې یې د ډول او سینګار د پاره په مینه سره استعمالوي، زرګران داګاڼه له سپینو زرو یا نورو ارځانو فلزاتو نه چې په رخ یې د زرو او بهور کوي په ډېر ښکلی هنري ډول سره جوړ وي، د کلیو او بانډو خلک یې د خپلو ځلکیو او پېغلو د پاره په لوړه بیه اخلی، دغاړه او ټټر کې یې د نورې ګاڼې سره یو ځای د زیات ښایست لپاره په ځان کوي په پښتو ولسی ادب کې یې یادونه داسې په مینه سره شوې ده :

## ۱- سندروکی :

يتو (۱) دې قسم وی‌چې زر گرشه
يمو (۲) خيولی (۳) وربل ته جوړ که تووېزونه (٤)
تووېز وړ که کەرووړي (۵)
پەز لکدم باندې که يمه روغ بەشمه

* * *

## ۲ - پامونوکی :

دبوم (٦) پەسر وبلوړې (۷) جلې
گل دې اړولی تووېزونه
خدای به دې بيا روته (۸) اتيوج (۹) کی
گل دې اړلی توو يزونه
دسېکرم اووړي سپينه خوله لرمه
گل دې اړولی توو يزونه
دبوم پەسر وبلو ړې جلې
گل دې اړولی توو يزونه

* * *

يموخيولی وربل ته جوړ که تووېزونه    وی‌وی زرگره يوره (۱۰)
خدايه دې سوريې ور تسه پام کې    وی وی زر گره يوره
چې پەلنهی‌زنه يې ووهی خولونه (۱۱)    وی‌وی زرگره يوره
يمو خيولی وربل ته جوړ که تووېزونه    وی‌وی زر گره يوره

* * *

جلکی کبره وړه شوه    تووېزيې دنومه (۱۳) غوټی وېينه (١٤)
پەحال سی يوالله خبردی    تووېزيې دنومه غوټی وېينه
دانا خبره خلك بەژەنه خبروسه    تووېزيې دنومه غوټی وېينه
جلکی کبره وړه شوه    تووېزيې دنومه غوټی وېينه

* * *

---

(۱) ستا (۲) زما (۳) خيالی (٤) تاويزونه (۵) واوړې (٦) بام (۷) ولاړې (۸) راته (۹) احتياج -
(۱۰) ياره (۱۱) خالونه (۱۲) نامه (۱۳) وهينه







د زرو ناوېزونه چې ښځې يې د ښکلا له پاره
د وجود په بېلا بېلو برخو ځړوي او په
استعمال يې وياړي

بند (*) كه تو ويز و نه ليلو (١٤)
سپينې روپۍ دی په وربل و يی (١٥) تالو نه ليلو
كله په وم (١٦) كله به نه وم
سپينې روپۍ دې په وربل و يی تالو نه ليلو
يمو يو ري (١٧) په رنګه مه شمو ره (١٨) سينه
سپينې روپۍ دی په وربل و يې تالو نه ليلو
بند كه تو و يز و نه ليلو
سپينې روپۍ دې په وربل و يی تالو نه ليلو
* * *
لو ليه ! (١٩) مو ته (٢٠) جوړ كه
د سروزرو تو و يزو نه لو ليه !
د تو و يزو مزي دې لنډ كه
د سروزرو تو ويزو نه لو ليه!
په اشكو نو (٢١) دې زيړی ولګاو نه
د سروزرو تو ويزو نه لو ليه!
لو ليه !مو ته جوړ كه
د سرو زرو تو و يزو نه لو ليه !
* * *
زا نګی ليلی ستا په سپينه غاړه دلو نګو تا و يزو نه
سر دې زما خنګل كې كيږ ده
ستا په سپينه غاړه د لو نګو تا و يزو نه
چې لونګين دې بو يوم تازه پرې شمه
ستا په سپينه غاړه دلو نګو تا و يزو نه
زا نګی ليلی ستا په سپينه غاړه دلو نګو تاو يز و نه
* * *

---

(١٤) ليلی (١٥) وهی (١٦) يم (١٧) ياري (١٨) شماره (١٩) لا ليه! (٢٠) ما ته (٢١) عاشقا نو (*) د نور ميك اشتراك له مخې دا پام د تنډې روپۍ سره هم راغلی .

سرمې خوګېږي (۲۲) طالب جانه توويز رووره (۲۳)
چې لوړې (۲٤) ګل رووره
اباسين روغی (۲٥) غوړې (۲٦) غوړې
چې لوړې ګل رووره
په‌سر يې رووړه بنوخی دخېول (۲۷) شولونه (۲۸)
چې لوړې ګل رووره
سرمې خوګېږي طالب جانه تووېز رووره
چې لوړې ګل رووره

* * *

سرمې نری نری خوګېږي
دتوويزومنی (۲۹) مې جوړدی نه رغېږي
دګود رهربوټی دوري (۳۰) دی
دتوويزومنی مې جوړ دی نه رغېږي
چې پرې لګېږي د جلکيوکاله مونه
دتوويزومنی مې جوړ دی نه رغېږي
سرمې نری نری خوګېږي
دتوويزومنی مې جوړ دی نه رغېږي



---

(۲۲) خوږېږي (۲۳) راوړه (۲٤) لاړې (۲٥) راغی (۲٦) غاړې
(۲۷) خيال (۲۸) شالونه . (۲۹) اميل (۳۰) دارو

# ټینګړی

دا پښتني پسول چې ځینې پښتنا نه یې پاولی، جر جري او ګو-
نګړي بولی ، په بازا رو نو کې زیات پیدا کیږي ، د کلیو او
بانډو خلك یې خپلواړ نو او پېغلو ته په لوړه بیه ا خلی هغه یې
د خپلو کمیسو نو په لمنو او دټکر یو په پیڅو دښکلا او ښا یست
له پاره په ډول ډول پړ کو نو (کتارونو) ټك وهی، پښتو ولسی ادب
کې یې یاد دا سې په مینه سره کیږي :

**۱ - سندروکی**

ګینګړ یو ډ که په مخ روغله (۱)
مو (۲) وې لاړې دو (۳) د کوبل (٤) پیره کو ینه

---

(۱) راغله (۲) ما (۳) ده (٤) کابل

چې د گینګړ یو یې جړ نګا شوه
موږې پسرلی د ی آ سمو ن(٥) کڼو (٦) کو ینه
پا ولی دي یخ سینه دې تخت دی
چې در نږدې شم ز ړه مې یخ لا ندې کو ینه

*　*　*

## ۲ - پامونوکی :

په جړ جړ یو ( ژر ژر یو) کې مې پوس نیولی دي
جا نا نه ګل مې تږ ي دي
چې د ید نی یو رمې بندي دی
جا نا نه ګل مې تږي د ي
چې مو ز د یګرشی د ید نو نه ټو لومه
جا نا نه ګل‌مې تږي د ي
په جړ جړ یو کې مې پوس نیولی دي
جا نا نه ګل مې تږ ي دي

*　*　*

(*) پاس په سینه مې دګو نګړو شرنګا شرنګ دی
ور ځم آ شنا ملنګ د ی
پاس په سینه ځای را ته جوړ که
ور ځم آشنا ملنګ‌دی
مزله وهلی مځکه ځای نه را کو ینه
ور ځم آ شنا ملنګ دی
پاس په سینه مې دګو نګړو شرنګا شر نګ د ی
ورځم آ شنا ملنګ دی

*　*　*

---

(٥) آسمان (٦) کڼا
(*) پښتنی سندرې دوهم ټو ك

(* *) گو نګړو يې شرنګ که ـ ټول عالم يې رنځور که
اور په لمنګی ليلی بلې لمبې وړي

ليلی کوچۍ وه کوچ يې وکړ
اور په لمنګی ليلی بلې لمبې وړي

ما يې خالي انګړه ته پوړته کړه لاس ونه
اور په لمنګی ليلی بلې لمبې وړي

گو نګړو يې شرنګ که ـ ټول عالم يې رنځور که
اور په لمنګی ليلی بلې لمبې وړي



---

(* *) پښتنی سندرې د وهمټوک




د کلیوالو ښاځو پېغلې جلکۍ د نورې پښتنې ګانې سره یو ځای د زیاتې ښکلا لپاره د تورو کلیچو (مرغلینو) کړیو تارونو او زر تــارو (تیله) څخه ځانته ښایسته کــوځــۍ کــړي سرېجوړوي او د خپلو تورو زلفو د کوڅیو او څڼی کړیو ویښتانو سره یې یو ځای کوځۍ کوي او دغو پېکو (سریو) سرونو ته دو-ریښمنو ځوځې جوړوي او دملا په سرنې یې ځانګې او خورا خیال پرې کوي، پېکی د څڼیو او ځنیو د سرونو ښکلا یو په دوه کوي. په ولسي ادب کې یې یادونه داسې راغلې ده .

**١ ـ سندرو کی**

خوله سې دمخ اه لوري واخله
پیکی سې غوړ دي چې رنځور نه شې مینه
ووړ کیه ! ته اړې اړي گرزه
پیکی سې غوړ دی چې اغېړ نه شې مینه





په کلیو او بانډو کې پېغلې او پېغلکې جلکې د خپل ځان د ښکلا
او ښایست له پاره مشکنې (مرۍ) را اخلي او دا ډول ډول رنګینه مشکنې
په تارونو او مزیو کې پېيي، له دغو پېيل شوو مشکنیو نه د څلورو
یا پنځو ساتیو په اوږدوالي سره تارونه (د مشکنیو سره یو ځای)
بیلوي او سروته يې دوې یا درې غوټې کړې مشکنې چې د څو نهي
بڼه پیدا کوي وراچوي. د دغو تارونو ښخ (وېخ) د یوې خپرې په
اندازه پلن د یو نیم یا دوه متره په اندازه اوږد ټوکر باندې ګنډي،
د مشکنیو دغه ګنډل شوي سزي د خپلو رنګینه لو یو ټکر یو او پور-



# د مشکنيو شنګلي



دوه پښمنو او زرتارو شنګلي چي پيځيه غم

ورته وايي:

خدايه د اکبر په زوال کې

شنګليو د که مې کټه غورځوينه

نیو په ځنګل وبا ندې د ښکلا او ښایسته لپاره پورې کوي او شنګلۍ (*) یې بولي . په پښتو سندروکې یې یادونه داسې راغلې ده .

**۱-سندروکې :**

تاخولو نګی (لنګی) ته څو نهي و کړه
زه به ټکري ته شنګلۍ ورو ا چومه
د شنګلیو یې شر نګا شوه
د جر جریو یې ګناه ده و به مرمه



---

(*) منګل شنګلې ته پېښه هم وایي، لکه چې خوک تور پېکی ته وایي : د ټیکري پیښې دې جوړې کړې ، دا په دې ما نا چې ښځې د مشکنیو او زرتا روپه وا سطه د ټکریو او پوړ نیو له پاره ځانته ځانګړې ښا یسته شوې یوه خپړ پاڼه رنجه د دوو نیمو متر و په اوږدوالي سره د واړو ځنګو ته جوړوي .



د کلیو او بانډو ښځې او پېغلې د نورې ښځینې ګاڼې سره یو ځای د خپل ځان د ډول او سینګار د پاره د لاس ګاڼه هم په مینه سره استعمالوي ، د دې لاس ګاڼې جوړښت داسې دی :

په کلیو کې پېغلې او پېغلکې جلکې د مخ نه لیدلو د آینې په شان ځوزرې ټوټې چې دایروي شکل لري لاندې باندې سره ګنډي ، د دغو ټوټو پر مخ باندې یوه هواره نوې ټوټه د پاسه ګنډي او دې ټه دوټې مخ وایي ، د دې هوارې ټوټې د پاسه در نګینه مشکنیو نه په ښکلي ډول سره سپرغې او ګلان د ستنې په خوله او د لاسو په ګوتو جوړوي ، په یوه وټی باندې شړې ، اووه یا اته سوه مشکنې د جوړښت له پاره سکوی کوي و ټی په دوو ډولو دي





پښتنې مېرمنې د نورو ګاڼي سره يوځای دور پېزو ،
مېکېزو او زر تار ونه جوړ شوې وټې هم د ښکلا او
سينګار د پاره استعمالوي

بېرو ته‌ی چې ښځې یې دور ښځو (ور ښځو) په څو نڅه یو سره
ښایسته کیږي اودې ته بېروته‌ی وایی، که د وتی ښځې یو ازې په
مشکنېو سره جوړې شوې وې او څو نڅه‌ي ونه لري دې ته سا ده
وته‌ی و یل کیږي ، کله چې وته‌ی تیار شي نو ښځې او پېغلې یې د روپېو
او ور ښځو د تڅرړ په دواړو ولیوا ولمنې په ښځو باندې د ښکلا لپاره
گنډي . په پښتو ادب کې یې ستا ینه د نورې پښتنې گانې په شان
داسې په مینه سره کیږي :

موږ داسې ناوې در کړه لکه شین زرغون وته‌ی
تا سې داسې زوم را کړی لکه بېرې (بورې) غواړه‌ی

سندرې لا دې پام سره داسې بدرگه کوي :

ما زدیگرمه راولې خدا یه
تا سې داسې زوم را کړی لکه بېرې غواړه‌ی

یو ساعت یې خوشالي ډیر یې غمونه
تا سې داسې زوم را کړی لکه بېرې غواړه‌ی

موږ داسې ناوې در که لکه شین زر غون وته‌ی
تا سې داسې زوم را کړی لکه بېرې غواړه‌ی






ددې گاڼې نوم په پښتنو کې بېخي نوی هم نه دی ، خو استعمال او رواج يې د نورو گاڼو په شان عام نه دی، وجه يې دا ده چې دا په اصل کې پښتنې گاڼه نه ده، ځکه ور سره څوك دومره اشنا يې نه لري، دا په اصل کې يوه هندي گاڼه ده چې په هند کې يې رواج زيات او استعمال يې عام دی . د نورې هندي گاڼې سره يې يوځای د هند ښځې د دوو داوو ستور له مخې د ښکلا او ښايست د پاره د دوارو لاسونو څټ ته چې د لاسو د مړوندونو (بنګړيو) نه نيولې د گوتو تر بېخ پورې رسيږي اچوي، دا پسول لکه چې د نوم څخه يې جوتيږي د مرغانو د پښو د پنجې او څپالو په شان دی چې له سرو او سپينو زرو نه په خالص او ځانگړې بڼه سره په ډول ، ډول شکلونو ډېره ښکلې جوړيږي .

په منګلو کې داګا نه دښځو او پېغلو په منځ کې دومره رواج نه
اري، خو په کالواو کور کې يې مشرې ښځې او پېغلې جلکې دخپل
کورواړوما شومانو ته دمينې او علاقې په خاطر چې ورته ګران دي له
مشکنيو (مريو) نه جوړوي، دوی زريا شپږ اواووه سوه دانې دول
دول رنګينه مشکنۍ را اخلي دما شوم دلاسود بندکيو نه ئېولي
دګوتې تر بېخو پورې لدغو مشکنيو نه ورته دښايست او ښکلا له
پاره دوې پنځې چې دوی يې ځپالي بولی جوړوي، کله چې دمشکنيو نه
جوړې شوې ځپالي تيارې شی دماشومانو دلاس ځت ته يې دښکلا
او ډول له پاره وراچوي، کله کله يې په نادر ډول سره په کليو
او بانډو کې يوه نيمه ښځه او پېغله دنورې پښتني ګانې سره يوځای
دمشکنيو نه جوړې نوې ځپالي په لاسو کړي خو استعمال يې دومره عام
نه دی چې سړی دې ورته څير شی او يادې يې په پښتو لکې حساب کړي.
سره له دې په دې باره کې ځانګړې خبر نه سړی حقيقت ته نږدې
کوي او لته پسې په کار ده چې داګا نه ولې په پښتنو کې له
موډه او استعمال نه لوېدلې ده.



# ماکو

دا پښتنې پسول چې زرگران يې له سپينو زرو جوړوي کټ مټ د هغه کوچنۍ ګېنګړي په شان دی چې داوښانو او وزې يې (وزګړيو) پسو غاړې ته وراچول کيږي له دې ګېنګړي څخه يې تو پير دا دی چې وروستی برخه يې اوږده او نری ده ژی او ځنځيرونه يې د ګېنګړي د ژيو په شان دي ، جوړښت يې ډېر ولښتيو ته ورته دی ، د زياتې ښکلا له پاره زرگران د ما کو په ځنځيرونو او ژيو باندې د زرو واړه ، واړه ګېنګړي (پاولی) د زرو له مزيو او نريو ځنځيرو په واسطه پرې په خاص مهارت سره پورې کوي د غو کوچنيو ګېنګړيو يا ژرژريو په ور بندو لوسره ماکو ديوې ښايسته

ګانې بڼه پیدا کوي او داسې معلومیږي ته به وایې چې د کو پر ګل (لمر ګلي، آفتاب پرست) د ګل غوټۍ ده، د منګلو د توی (نیز سیلاب) دغاړې ښځې او پېغلې یې داوربل او(*) ټټر د پاسه د ځان جوړولو (سینګارولو، ښایسته کولو) له پاره ځړوي. په دې اساس کې یې چې دوی کې رواج لري یادو نه داسې راغلې ده:

په تورا وربل کې مې ما کو وژ ر یده.

پوړ ته (پورته) شه جانانه زلزله ده

څوک به یې ولې خاطر نه کې

پوړته شه جانانه زلزله ده

چې کور کې سره او سپین لري یا سپین مخونه

پورته شه جانانه زلزله ده

په تور اوربل کې مې ماکو وژ ریده

پوړته شه جانانه زلزله ده

په نبرد یې او مشابه ډول دا پام داسې په کې ویل کیږي:

په تور اوربل کې مې ماکو وژریده

د پاسه زلزله شوه جانانه

خوله به د خدای په رضا در کم

د پاسه زلز له شوه جانانه

ګړی مې ولې ښورې خوشته دې کړمه

د پاسه زلزله شوه جانانه

په تور اوربل کې مې ما کو وژ ریده

د پاسه زلزله شوه جانانه

د سیمې د اختلاف یعنې د نبرد ېوالی او لرې والي له امله په ورته بڼه داسې هم ویل کیږي:

---

(*) د توی له غاړې نه مطلب د منګلو هغه سیمې او ځایونه دي چې کورمې (ځکمنیو) ته نږدې پرتې دي یا په ځکمینو کې استوګن منګل دغه ګاڼه د نورې ګانې سره یو ځای استمالوی د منګلو په جګو او غرنیو برخو کې دا پسول دومره استعمال نه لري

په تور اوربل کې خمې (خومې) ما کو وجر یده
پر یېږده ظاهر چا نه زلزله ده
صورت مې زر یارسې زرگردی
پر یېږده ظاهر چانه زلزله ده
په انگر یږی بیاتي مې غوښې پر پکو ینه
پر یېږده ظاهر چانه زلزله ده
په تور اوربل کې خمې ما کو وجریده
پر یېږده ظاهر چانه زلزله ده



# پسول په مدون ادب کې

په واسې او وګړنې ادب برسېره پښتنې پسول اوګانه د پښتو ژبې په مدون غوړېدلي ادب کې پښتنو شاعرانو داسې په ښکلي انداز او مينه سره ياده کړې ده :

چې په هر زمان يې و نيسي ومخ ته
دګلابو ګلا پيدا شي ستا په شتت کې

مرصع باهو په لاس ګوتې په ګوتو
ژرنګهارېې د پايلو دخړې

دخوشال ختک دپاره چې سی خوړ شو
په مغان مې وښې کښبول باهو هم لا

زرګره وښې مات کاا وړې سازه کا
لا تر وښې نه اوړې بهتره ده

کښېنه په انګړه کې مخا مخ چې درته ګورم
تورلونګين دواړه چندن هار په سينه تال کړه

بخت دی چې يې اوس ستاله لبانو سره خښده
تاسې ننه زړه په سره پېز وانسد چې وښا ته

( خوشال ختک )

لاس و پښې دې بې زیورو ښایسته دي
څه منت به د پائیلو د باهو کړي

دا هلال دی چې لیده شي په شفق کی
که په لاس د گل اندامې سپین وښی دی
( رحمن بابا )

* * *

یاد ښکلیو د پاولیو شر نگهار دی
یاد عشق د لپو نیو د څنځیر

عشق د عقل په تد بیر چلاوه نه شي
په دې ناوې نه جوړیږي پسول د چا

په نگار د مکار د هر غلط مه شه
په بد رنگې ناوې پروت دی زري پسول
( حمید ماشو خیل )

* * *

صدف لاس په دعا ونیسي دا وایی
چې که ځای مې د گوهرو ستا پېزوان شی
( معز الله )

* * *

که ناوې چې سورتیک په تندي و کا
هسې وگا نڼل غټو لو سره پسولونه
( ښکار ندوی غوری )

* * *

دا شبنم د گل په پاڼې پورې یخ شو
که په غوږ د گلرخ هسې سپین والی دی
( پیر محمد کاکړ )

* * *

آینه په لاس کې واخله ستر گې توري په کنجل کا
پېزوان پر لبو سپور دواړې زلفې الوول کا
( بهایی جان )

مور د سپڅني گرزوي خوړ منگي نه کوي
ته سور پېزوان غواړې د سر وزروله هاره سره
(گل پاچا الفت)

* * *

ما په پېکې دې چې لږه کلیمه داره روپۍ
راته چپه بهدي کتلاوس خپه یې پېغلې
ستا د پاولو او د اوړی شرنګامې نه هېرېږي
ته مې د مستې شاعرۍ خوږه نغمه یې پېغلې
(عبدالکریم مصحب)

* * *

د نتکی نه دې وریږي بخرکی د نیران
تو رې زلفې د ماران تاوشوي اه نښتره
(نور صاحب)

* * *

خبر به شي هلکه د پاولو گونگرو اه شوره
دا سو ر تیک ته مې گوره
(توکل)

* * *

پېزوان دې او پړان په سر دې زانگی تاویږونه
زلفانې دې چورې
(ملا قادر)

* * *

په نرۍ غاړه دې د سروزرو امېل دی
عاشق پرې غابل دی
نظر و اړه نگارې
(شیر افضل)











د پښتنې پسول بېلابېلې نمونې

ستا امېل کې يې ستل زړونه پېيلي
چاجوړ کړي ستا دغاړې لو نګين دی

دا وو د پښتو د مدون ادب د لوی او ځپاندسين خوښکلې مرغلرې چې د نمونې په ډول وړاندې شوې ، ددې سين پراخه غېږ له زيا تو مرغلرو نه ډکه ده چې دلته يې راوړل موضوع اوږدوي.



له کلي ووزه له نرخه مه ووزه

# نرخ او قومي لیاري (۱)

په کلیو او بانډو کې د قومونو ترمنځ د نرخ اولیارې په نوم یو عمومي قانون وجود لري، د کلیو او بانډو ټول خلک په دې مجبور دي چې د دغو نرخونو اولیارو چې د قام په منځ کې د یو قانون بڼه لري منښته وکړي او به دې ځان مکلف کړي چې د قوم د پریکړې نه سرونه غړوي که د کلیو او بانډو په خلکو کې

---

(۱) لارې

څوك د قوم نرخ او قانون ته غاړه کېښږدي نو د قوم د قانون سره سم داسې سړی د قوم په منځ کې تپل (۲) کیږي، دا په دې مفهوم چې د ده د قوم په منځ کې اعتبار له لاسه ورکړی او د کلي او با نډه وولس يې په خپلو ښو بدو او د ژوند په کړو وړو یعنی مرګ او ژوند کې نه خبروي، دی چې څه کوي بوازې به يې ځانته کوي دا ځکه د ده د قوم قانون ته غاړه نه ده ايښې او له قامه وتلی دی نو ځکه په قام کې دی د ژوند په کړو وړو کی برخه اخیستلی نه شی د دې تکی علت دا دی چې ده د قام له نرخ نه سر غړولی دی.

له دغو ټکو نه جوتیږی چې نرخ په قبایلو کې ډېر زیات نفوذ لري او په قبیلوی سیستم کې د روغې جوړې یوه روښانه ډیوه ګڼل کیږي، نرخ اولیارې یو غټ مفهوم لري چې د قبایلو د ژوندانه په چوکاټ کې د تولو جرمونو حدود او د جزاګانو اندازه و ربانـدې معلومیږي. د قبلیـوي سیـستـم د کـو ډ یـو د غــه روښانه هینداره او بېدې ولــې ا ور ېښې لري، که سړی لنډه پسې وکړي داسې معلومیږي چې ولې اوریښې يې د قبیلو او قبایلو د ژوند سره مستقیمه اړه لري له بلې خوا داسې بریښي چې د وخت او زمانو په تیریدو سره به په دغه تعاملي او حقوقي سیستم کې ډېر زیات تغییر ترڼن پورې راغلی وي دا ځکه د اوسنی زمانې د ژوندانه د تحول سره په دې سیستم کې هم خامخا تحول راځی او په یوه حال نه پاتی کیږي . . .

---

(۲) یو شی د خاورو او ختو (اخېړ) په واسطه سره پټول لکه احمد پیسې او خپل کالی په یوه ځای کی و تپل، خو د لته تپل دا مانا لري چې د قام د قانون او پرېکړې نه سر غړونکی سړی دوی په (پښتو) یعنی خپل منځ کې نه پرېږدي له هغه سره نه څوك مرسته کوي او نه ورسره راشه درشه چې دې حالت ته تپل ویل کیږي.

پښتانه قومونه ټول په تېره د پکتیا په قومونوکښې د یو او بل د تیري او تېري له ژغور او نه په خپلومنځو کښې د اسې قوامی نرخونه اولیارې لري چې په ژوند کښې یې غوره ارزښت لري ، دغه قومی پر یکړې دوی ته له خپلو پلرونو نه را پاتې دي چې د قام در وغې جوړې او رغښت په برخه کښې ډېر زیات اهمیت لري او ټول یې په اجرا کولو مکلف دي .



(۴۵)

# په منګلو کی نرخ څه ته وایی ؟

زموږ په ژوند کې هره ورځ دا کلمه ډېره استعمالېږي چې په بازار کې نرخ لوړ دی او که ټیټ ؟

د غلې نرخ په څو دی ؟ د سونګ د لرګیو نرخ څو ته رسېدلی دی ؟ جوته شوه چې نرخ د یوټا کلی جنس د مقدار ارزښت ته وایی .

بر سېره پر دې په پښتنو کې د ظلم ، زور ، تېري ، پېغاې

---

(*) د منګلو په قام کې نرخ ته خلی هم وایی ، خو خلی ځانته مفهوم لري ، په عمومی ډول مره خلی دې ته وایی چې په یوه *

او مېړو ښې ښځې ته ښتول ، دسپیلتیه ، تور ې شپې ، پنځه کې ، کبر او سهوې مرګ ( قتل ) ، غلا ، ګوډ واو او نور و معنا ملو دحل او روغې لپاره د نرخ کلمه استعمالیږي اومعنایې داده چې دوه تنه منديان ( مديان ، د ښځه ، مېړ څې ) چې تر منځ يې د بدې اويا نورومعاملو اولا نجو اور بل شوی دی د قام د جرګې په کېنا ستو سره به دا بدي اومعاملې د نرخیانو په سم نرخ سره چې خانته ځانګړې لارې او ارزښتو نه لري روغه سره کوي ۰

کوږ او غلط نرخ په پښتنو کې نه منل کیږي ، داځکه وايي چې مر کې او نرخیانو يوه لو ري ته په ښه مخ وراړولی دی نو دا بل لوری د مرګې نرخ نه مني اودمر کې د پاسه بله مر که راولي . څو چې په سم نرخ سره خلاص نه شي تر هغه پورې قناعت نه کوي . که مرکه رخصت شي نودې مرکې ته ما ته مر که

* شهيد يايوه نامې مړي باندې د هغه د نوم د ګټلو په اثر د تیږو خلی اوياد ګارجوړ کړي · سر بېره پر دې په منګلو کې خلی د ددو واو دریو یاخلورو سپینو تیږو نه چې مشکوني یې بولی هغه جوړه شوې نښکه ( نښه ، نشان ) ده چې دواده د دو سره سم يې دجلکي خپلوان ( خوږ يځې ) د هلك له لوری ځوا نانو ( ورو څیو ) ته د خلور واو پنځوسو و یازرو مترو په فاصله اړې ايږدي او ورو څې ځو انان مجبور دي چې داد سپینو تیږو نه جوړ شوی نشان ( خلی ) په تو پکو سره وولی ، که چیرې خلی و نه ولی کله کله د جلکي خپلوان جلکې اونا وې نه ور کوي اووايي خلی وو لیء او بیا ناوې بو زيء ، په دې ډول سره ور وڅې مجبور دي چې خلی وولیاو رنګ يې کړي · · ·

وايي، ځکه چې نرخ يې ددوا ړومديانو په قناعت سره نه دی تيو کړی ، په سم نرخ باندې هر څوك پوهيږي او مديان هم قناعت پرې کوي د قام هرغړی سم نرخ پيژنی ، منی او ومننه يې کوي.

څنگه چې نرخ ډير ه سخته او پيچلې موضوع ده نو په کليو او بانډو کې هر څوك نه پرې پوهيږي بلکې نرخيان (نرخی خلك) په قام او کلی کې معلوم دي . په کليو او بانډو کې مديان دخپلې لانجې او پيښې شوې معاملې دهوار ولو له پاره مرکچيان راولی او د واړه مديان خبرې ورته کوي ، کله چې مرکې ته مديان خوله وښوروي او مرکچيان ددوی په موضوع او معامله باندې پوه شی نو دواړه مديان له جرگې نه وباسي او مرکچيان دمديانو په غياب کې په موضوع باندې هراړخيزې خبرې کوي ، څو چې موضوع دد واړو په گټه فيصله شی او کوم لوري ته په کې طرف ونه شی ، مرکچيان معامله په نرخ سره خلاصوي ، که په نرخ سره سمه خلاصه نه شی مديان يې نه منی ، که په سم نرخ سره معامله خلاصه شی نو مديان پرې قناعت کوي او معامله ختميږي د مرکې او معاملې دروغی په آخر کې مديان مرکچيانو ته خاوت (خلات) ور کوي .

لکه چې اشاره وشوه نرخ په عمومی ډول سره د ټولو لنيز و معاملو دروغې جوړې لپاره په قبايلو کې رواج لري ، نرخ په دوی کې ديوه قانون بڼه لري چې د ظالم او مظلوم تر منځ پيښه شوې موضوع په عدل سره ور باندې حل اور غيږي . په منگلو کې کله کله نرخ ته څلی هم وايی او داسې يې استعمالوي :
« څلی به را سره وکې » ،« په څلی به يې را سره خلاصه کړي » ،
« پـه څلی يـې راسـره ودروه » ،« په څلی به يې راسره ومنې او که نه کېږ ته يې بيا يې » .

# نرخ کله پیدا شو؟

د نرخ په برخه کښې دا په یقین سره نه ده جوته چې څرگند تاریخ یې کوم وخت دی خو دومره ویلای شو چې په کلیو او بانډو کې خلکو ته نرخ د خپلو نیکونو او پلرونو نه پاتې شوی او پښت په پښت تر نن پورې رارسېدلی دی. د نرخ د ارزښت په باره کې دا ټکی د غور وړ دی چې څوك باید په چا تیری ونه کړي، ددې له پاره چې د تیري مخه ونیول شي او زیاتو بدو ته لاس وانه چوي نو ددې ظالم

د تیري د پای ته رسو لو له پاره د کلي او قام مر که جوړ یږي او په موضوع باندې هراړ خیز غور کوي، د نرخ له مخې تیری کوونکي ملامتوي او د نرخ په اساس دې ته اړ کیږي چې مقابل لوري ته د خپلو بدو پوروړ کړي .

په کلیو او بانډو کې چې قامیو وارد یوې معاملې په برخه کې د رست او سم نرخ تېر کړي او سر کچیانو په زیات غور سره تر سره شي خامخا به منل کیږي او څوك یې ما تولی نه شي، څوك چې د سر کچیا نو سم نرخ مات کړي او وه یې نه مني نو د اسې ی کبرجن بلل کیږي. قام او کلی یې (تپی) دا په دې مفهوم : داسې ی چې د قام او کلی له پر یکړې نه یې سرغړ ولی دی دا تفا ق له مخې یې په خپلو خوښیو، کړو وړو او خوشا لیو کې نه شریك کوي ، دا ځکه د دې قام نرخ او پر یکړې ته په درنښت سره نه دي کتلي له دې کبله یې د خپل منځ نه تجر ید اوگوښی کوي او ورته وايي تامو ږ ته په سپك نظر و کتل ته ز مو ږ نه یې . ځنگه چې سړ ی په بشري تو لنه کې ژوند کوي او یوازې څوك د ژوند د رو ند پیتی په سمه توگه نه شي پورته کولای ، نو داسړ ی چې د نرخ نه یې سرغړ ولی او د قام پر یکړه یې ماته کړې ده په دې یواز یتوب او گوښه کید و سره نه یر خپه او شر میږي او بې له درنگ نه کلي او قام ته ناغه ور کوي او د نرخ منلو ته غاړه ا یږد ي دا تیکی د نرخ د ارزښت د پاره د مثال په ډول راوړل شو او تر ې جو تیږي چې په کلیو او بانډو کې نرخ خورا ارزښت لري .

## په منگلو کې د وژلو نرخ :

د سړي وژل او قتل په منگلو کې بیاې بېلې بڼې لري ، نرخو نه یې هم سره یو شان نه دي د وژ لو په لړ کې دا ډولو نه او نرخو نه یې د یادو لو وړ دي :

**سپېلتهٔ مرگ:**

په قبا یلی سیمو، کلیو او بانډو کې که یو داسې تن چې نه یې د چاسره په ژوند کې بد کړي وي او نه یې د چاسره بدي پېښه شوې وي او هیڅ گناه او جرم ونه لري، نو که چا داسې پاك او بې گناه سړی مړ کی دې ته سپېلته مرگ وایي، ددې په مړینه سره د قاتل او مقتول د کورنیو ترمنځ د بدۍ اور بلیږي داځکه د مړه خپلوان غواړي چې خپل سړی وگټي او هغه روغ کي خو چې د چا پېغور ور-پاتې نه شي دا په دې مفهوم:

کېدای شي چې خوك یو وخت ورته ووایي تاسې ژوندي گرزۍ اوزوی ورور خو مو دې د پلار تربره (تربور) دلاسه توري خاوري خوري په دې پېغور سره د مړه خپلوان د خپل مړه د گټلو له پاره د توري او بدۍ ملا تړي، خو د قاتل خپلوان چې دد وی ورور اوزوی بې له کومې پېښې، بدۍ او تیري څخه لوی جرم او گناه کړې ده ځانونه ډېر خړ او ملامت بولي او خپل مرگ هم د مره گرۍ په سترگو وینی او د مړه له خپلوانو نه ځانونه ساتي چې مړه نه شی، له دې کېله ددې ناحقه بدۍ دخلاصېدو له پاره چې ور پېښه شوې ده فکر کوي چې څنگه به دا اور مړ شي؟ دوی د ځان د ساتنې له پاره په کور کې د ننه دیره کیږي او یوه څخه (گوله) ډوډۍ ورته پیدا کول سختیږي، ځکه له کورنه بهر په کوم کار پسې وتلی نه شي. که غور وشي په کلیو او بانډو کې دا ډول پېښه د یوې بدۍ پر ځای دوې بدۍ او زیاتونه پیدا کوي، یو د دښمن بدي او بله د ډوډۍ د نه لرلو د خوارۍ او نیستۍ بدي.

ددې لویې ورکې له پاره د قاتل خپلوان په پټه یو ځل د کلي او قام له مشرانو سره وینی او هغو ته په ډېره ملامته بڼه وایي: زموږ

پلانکي زوی او ورور، پلانکي به له کومه وږي وخته بې ګناه مړ کړی
هغه خوار به سپېلنه وواږه پرمونږ یې د پور او پړې حق دی چې
یا مو مړه کړي او یا یې سوز (دوینې بیه او پور) ورکړو. که
تاسې له مونږ سره مرسته ونه کړئ او مونږ د ننواتې په ډول هغو ته
ورننه ولیء زمونږ ژوند ډېر تریخ کېږي یا به ټول عمر په کور کې
ناست یو یا به له کوره او وطن نه ورکېږو. د کلي او قام مشران چې
نه غواړي د بدۍ اور لمبې وکړي نو د قاتل له خپلوانو سره یو ځای
د مقتول د خپلوانو کورته په ننواتې ورځي چې د قاتل
خپلوانو پېړي په غاړه کې اچولي او تور سرونه ورسره روان وي.
کله چې د مقتول د خپلوانو کورته ورسېږي د مقتول خپلوان
د مشرانو پرمخ د هغو ننواتې مني او په وړین تندي هر کلي ورته
وايي. مشرانو او سپین ږیرو ته وايي ستاسو پرمخ به روغه وکړو
وکه څه هم زړونه مو ډېر سوځي تاسې به کوښښ کوئ چې مونږ په
نرخ سره سم خلاص کړئ.

په منګلو کې د سپېلنه مړه نرخ معلوم دی، مرکه چې جوړه
شي نو له څه خبرو اوغور ورو سته د نرخ له مخې د قاتل خپلوانو ته
چې د مړه خپلوان هم حاضروي وايي: تاسې ډېر لوی جرم او په
ناحقه مو مړی کړی نو د دې مړي د هډو د ګناه لپاره به شپېته زره (۱)
نغدې افغانۍ او یوه پېغله جلکۍ ورکوئ او وه ډنګره غوایان
به د ناغې په توګه کلي او قام ته د مړه په کور حلالوئ، که دا ونه
منئ، نو هله به مو سره اختلاف کېږي د مړه خپلوان مجبوردي چې
تاسې مړه کړي. د قاتل خپلوان د مرکې نرخ مني په دې نرخ کې
دوې خبرې دي. نغدې پیسې د مړه پور او سوز دی، پېغله جلکۍ د دوا-
ړو کورنیو ترمنځ د دوستۍ او خپلوۍ نښه ده چې سره دوستان
شول، د دوستۍ په پیوند هغه له تېرو بدو او پېښو نه سره خلاصېږي
نو د جلکۍ په کولو سره دوی خپلوان شول، او وه ډنګر غوایه

---

(۱) اوس د مړي سوز (دوینو پور) یولک شل زره افغانۍ په منګلو کې اخستل کېږي.

دمړکې د درنښت له پاره حلالېږي.

## کبر اونار وا مرګ :

په کليو او بانډو کې چې کله يو ځوان په خپل مال، ښځو يا همد-
اسې د کومې رخې او شخصي کينې په درلودلو سره مړ کړ او په
مړو کفنو کې خاورو ته وسپارل شو دا د کبراوناروا ياز ورزياتي مرګ
دى، دمړه په خپلوانو ډېر سخت تماميږي، ځکه دوى وايي مونږ ته
يې په سپکه سترګه وکتل. د خپل مړه د ګټلو له پاره د خداى په نوم
باندې او (قسم، لوړه، سوګند) کوي. او وايي څو مو چې خپل مړى
ګټلى نه وي تر هغې به خپله ملا خلاصه نه کړو تو پک او بند به مو په
غاړه کې وي .

## د کبر اونا رواد مرګ نرخ دادى:

کله چې ډېر دواړو مديانو او به يدارو د قام د سپين ږيرو په مخ
او درنښت روغه سره کوله نو په دې صورت کې به د نرخ له مخې
د مړه ښځبنتو ته د قاتل خپلوان يو لک شل زره افغانۍ (۱) سوزاو
درې پيغلې ور کوي ، د کبر اوناروا په مرګ کې د مړه پور ځکه
يو په دوه دى چې بل څوک بيا داسې يو کار ته ملا ونه تړي. سره له دې
چې د مړه ښځبتن دا نه مني ، خو د کلي او قام د مشرانو په مخ روغې
ته په ډېره خوارۍ او سختۍ سره غاړه ايږدي، که څه هم دوى قسم
خوړلى وي چې د يو پر ځاى به لس پرې وژنو او يو له بل به سره ستړه او
مېړا ته کوو. دا چې زموږ پر ځاى د کلي او قام مشرانو زموږ په
غم او بدۍ کې ګډون کړى نو د دوى د مخ په خاطر او لحاظ د دوى د د-
رنښت له پاره د هغو په مخ کې چو په خوله يو او له د ښمن سره روغه
کوو. لنډه دا چې د کبر اوناروا مرګ د نرخ له مخې يې سوز (پور)
يو په دوه او د بدۍ په صورت کې چې اوږده شي وژل تر څو څو تنو
پورې رسيږي داسې پېښه شوې چې کورنۍ سر ستې شوې دي.

---

(۱) د کبراوناروادمرګ پور ريو په دوه دى او س په منګلو کې
دوه لکه څلوېښت زره روپۍ ورته تلوى.

## ساوې مرګ:

په پکتیا کې د سهوې او خطا مرګ ته پړنه دي لیدل شوی خو کله کله په کلیو او بانډو کې که څوک د چا د لاسه مړ شو او د قاتل خپلوانو په عمل کې د مړه خپلوانو ته دا ثابته کړه چې دا مرګ موږ په کبر او کست سره نه دی کړی نو د مړه خپلوان یې د نرخ سره سم روغې ته تیار یږي.

د قاتل خپلوان د بدي د اور د مړه کولو له پاره د کلي او قام مشرانو سره یو ځای د ننواتې په ډول چې شلات پړي یې په غاړه تور سرونه د مړه خپلوانو ته وروان شي د کلي سپین ږیري او ملایان یې په مخکې وي هغو قرآن مجیدونه په سرونیولي وي ورځي. د قاتل خپلوان د ورسید وسره د مړه خپلوانو ته وایي موږ د کلي او قام د مشرانو په منځ کې ستاسو په مخکې یو، د جوړې او روغې له پاره تاسو ته راغلو دا د کلي او قام مشران را سره ملګري دي او پړي په غاړه مو تاسو ته ځانونه را سپارلي، خو چې رضا وي هغسې وکړی، دا مرګ موږ په کبر او ظلم نه دی کړی سهوه را نه شوې ده دا چې شلات پړي په غاړه مو تاسې ته ځانونه را رسولي سرونه مو ستاسو په لاس کې دي څنګه مو چې زړه وي هغسې پښتو به وکړی. د مړه خپلوان چې د وی د کلي او قام له مشرانو سره و وینی ور ته وایي: موږ پښتانه یو پښتو پېژنو د مړو مخونه هم پېژنو، سترګې له سترګو شرمېږي موږ د قام د مشرانو په منځ ستاسو ننواتې او روغه منو څنګه چې قام لازمه بولي په نرخ به مو سره خلاص کړي.

د سهوې د مرګ نرخ داسې دی: د مرکې د پریکړې سره به د قاتل خپلوان د مړه خپلوانو ته د نیم مړه پور ور کوي یعنې د شپېتو زرو نغدو افغانیو پر ځای به دېرش زره افغانۍ د مړه

سوزورکوي يوه پيغله به هم دسره خپلوانو ته ور کوي او بدي پهدې سره پای ته رسيږي ، که دسره خپلوانو ننواتې ونه منله نو خامخا به په خپل سره باندې څوک وژني اوهم په هم سره ګډل کيږي په داسې حال کې بيا دلوسري قاتل خپلوان ځانونه سوي ګڼي اوواېي زموږ ننواتې يې ونه منله سره يې کړونو که روغه يې زره نه غوښته دوی بل تن هم په خپل سري وژني په داسې حالت کې بدي پسې کړه کيږي او بېل بېل نرخونه دروغې له پاره غواړي.

څنګه چې دسوي مرګ په منګلو کې لږ پېښيږي نو يې دنرخ بڼه هم سمه نه ده معلومه کله دسره ښځې دقاتل خپلوان دمشرانو په مخ بڼې اوننواتې يې په سينه منی او دهغود رنښت له پاره وايی موږ اوتاسې ټول سره کيږو او سرګډ لرو . تاسې چې دقام مشران اوسپين ږيري راوستلی موږ دهغو پرمخ له دې ږ خه تېر يږو اوددوی په راتګ ځانونه سره نه بولو موږ وبښلی ؤ نو په دې ډول دخپل سره پورنه اخلي خو مشران دقاتل له خوا يوه پيغله دخپلوی په نوم ور-کوي او په دې سره دوی خپلوان کيږي او د ښځې يې له منځه سره ور کيږي .

## توري شپې مرګ :

دتوري شپې سري چا ته ځمعلو ميږي چې منديی (مدیی-موده-يی) اود ښمن يې څوک دی ؟چاوژلی اوولې يې وژلی دی ؟ددې سري نرخ په منګلو کې داسې دی :

دشپې سری په شپه ګډل کيږي، دسره خپلوان نه شي کولای چې په چا باندې دګومان اوشک کولو په صورت کې تورن په سپينه اوړ نا ورځ پرې سر کړي، که په رڼا ورځ څوک پرې سر

کړي ، د نرخ سره سم دا مرګ د کبر مرګ دی او هله د هغه سره نه مخی کوي او د مړه خښتن بیا د وی ته ور جګیږي په سپینه ورځ یې پرې وژنی . د شپې د مړي نرخ لکه چې وسو ویل په چا که څوک د ورځې ګومان هم وکړي د شپې به یې ګټی ، که دواړې دښمنی ډلې سره مړه کی دا بل ، د وهمه بدي د ځکه د وی وا یی د شپې او ورځې تو پیرا و فرق باید وکړشی ، د شپې مړی په شپه د ورځې مړی په ورځ ګټل کیږي .

## پنځه کی مرګ:

په منګلو کې که څوک پنځه کې مړ شی ، د قام د نرخ سره سم دا مړی په پنځه کې اخستل او ګټل کیږي . پنځه د منګلو ترمنځ یوه اصطلاح ده ، کله چې څوک دد و لو یو پلر ینوا و قامو نو ترمنځ په جګړه کې مړ شی د مړه خپلوان مجبور دي چې پنځه کې یې وګټی که څه هم سړی ورته معلوم یا یې ګومان پرې شوی وي ګوښی یې وژلی نه شی ، که ګوښی یې بې د پنځه له جنګ نه مړ کړي دد غه مړي خپلوان بیا ور جګیږي هغه وژنی ، په دې ډول سره بدي بل نوی رنګ پیدا کوي . د پنځه د مړه نرخ دا دی چې په پنځه کې به ګټل کیږي . که دا دې ټکی نه یې مړو غړا وه د نرخ له مخې پرې خلاصیږ ای نه شی .

## سړي د ګوډوالو نرخ:

که څوک د چا د لاسه ګوډ شی ، د قام د ټولي نرخ سره سم مجرم په ګوډ ډیږي . یعنې د ګوډ نرخ ګوډ بدل دي . که د ګوډ دروغې له پاره مرکه جوړه شي نو د ګوډ بیلا بیلو انډامونو پور داسې دی :

۱ـ که د چالاس گوته شي پور يي (۱) د مړه د پور خلورمه برخه ده

۲ـ که د چا پښه گوته شي پوريي د مړه د پور خلورمه برخه ده

۳ـ که د چا ستر گه ړندہ شي پور يي د مړه د پور نيما يي برخه ده

۴ـ که د چا د مخ غابښ مات شي پور يي د مړه د پور نيما يي برخه ده

۵ـ که د چا پوزه پريکړه شي، لاس او پښې شي پور يي د مړه د پور نيما يي برخه ده.

۶ـ که شنه ئ او غوږ ونه يي بچي، پري او انه شي پور يي د مړه د پور نيما يي برخه ده.

۷ـ د لاس د گوتو او پښو د گوتو پور د مړه د پور نهمه برخه ده.

۸ـ د لاس د گټې گوتې پور د نورو څلورو گوتو سره يو شان دی، که د چا د لاس څلور گوتې څوك ماتې کړي او بيا دا د گوتو گوته جگ شي د مقابل نفر د لاس گټه (غټه) گوته ماته کړي د نرخ له مخې د څلورو گوتو سره معادل پور لري.

۹ـ که په نور وجود کې چا څوك ټپي او زخمي کړ د نرخ له مخې به دا ټپ دوه تنه گوري که ټپ او زخم د پرژ ور و پور يي جگ او که ټپ بر سېرن و پور يي کم او لږ دی.

---

(۱) په منگلو کې د مړه پور شپېته يا يو لك شل زره افغانۍ دی، د وخت په اوښتو سره د مړه سوز (پور، ټپکې، د وينو بيه) ځانگړې بڼې غوره کوي، دا په دې مفهوم په هغه وخت کې چې منگلو دوزو (بزو) رمې درلودلې د مړه پور له د پرشو زرو نه تر څلو پښتو زرو پورې و، د وخت په تېرېد و سره شپېته زره او يو لك شل زرو ته ورسېد، او س د مړه پور نور هم جگ شوی او تر دوو لکو پورې رسېدلی چې علت يې د ټولنې او قام په ننه کې د اقتصادي او تو ليدي بڼې په اوښتو پورې تړلی معلومېږي.

## مېړ ونې ښځې تښتول :

که د چا نکاح کړې ښځه څوك وتښتوي په دې بد عمل د ښځې خاوند چې ناموس يې بل چا تښتولی دی د بدۍ توپك پورته او بند تر ملا پسې تړي که تښتوونکې ښځه او سړی دواړه سره مړه کړي نو هله د هغه سره مخې کيږي او د بدۍ اورمړي.

که ښځه او تښتوونکی سړی خپل کوراو وطن پرېږدي او يوه خونديي ارې وطن ته لاړشي لومړی مېړه يې پسې گرزي او هغه سره وژني. که دوخت په تېر ېدوسره سړی مړ شي اوښځه بيا له بل سره ولاړه شي داد وهم سړی هم په دې ښځه وژل کيږي که چېرې داد وهم کس مړ شي ښځه بيا بل دريم سړی بوزي داد دريم سړی هم تورن دی او پرې مړ کيږي، په دې ډول سره په مېړه ونه ښځه باندې د نرخ له مخې اووه تنه مړه کيږي.خو که لومړی تښتوونکی سړی او ښځه ځای په ځای سره مړه شي لکه چې وموويل د نرخ له مخې هله له هغه سره مخې کيږي او بدې خلاصيږي.

که چېرې د ښځې لومړی تښتوونکی د ښځې خاوند پيدا نه کړي او ښځه او تښتوونکی دواړه وژ وندي وي او د تښتوونکی ورور يا بل خپل پرې مړ کړي نو په دې وژ او سره بدي نه خلاصيږي او کيږه کيږي،د تښتوونکی خپلوان وايي موږ ته بې ځايه راجگ شو ، تورا وسپين ته يې ونه کتل موږ يې سپېلته مړه کړو په دې کار يې ځانته د بدۍ لمبې نورې هم زياتې او کېږې کړې ، د وی په دې وژلو ځانو نه خلاص نه بولی ور جگيږي د ښځې مېړه يا يې خپلوان وژني . که چېرې د دې بدۍ اور په نرخ سره سم مړ او مخه يې و نه نيول شي نو د دواړو د ښمنو ډلو ترمنځ بدي تر کلو نو کلو نو او پېړيو پورې پاتې کيږي چې و چ او لاندە يو ځای سره په کې سول کيږي.

کله چیري دښځې لومړی مېړه او د تښتو ونکی خپلوان سره مړه نه کړي او وغواړي روغه وکړي او مر که راولي ، نو مر که د قام له نرخ سره داسې پرېکړه کوي : د تښتو ونکی خپلوان به د ښځې مېړه ته دوې پېغلې یوه د ښځې په بدل او بله کې بلمه به د شرم او در نښت له پاره چې ولې دد وی خپلوان داسې بد عمل ته لاس اچولی ور- کوي په دې ډول هم د مېړه و ښې ښځې د تښتو لو د بدۍ اورمړي .

کله کله د ښځې لومړی مېړه نه غواړي او مرکه نه مني او وایي : » زه په د نیا کې ژوندی یم زما نکاح کړې او د سره امار ه (۱) ښځه به د بل

---

(۱) هغه ښځه چې په سره تکړي ، ډولی اوخو شالیو یې ځانته راوده کړې وي او د هغې سور د سمال یې را وړ ی وي . دوا ده په ورځ د رواج له مخې په کلیو کې ز وم ته سور د سما ل کوي . د منګلو په قام کې د سره لمړه (ریمال ، د سمال) ښځه هغه د چې یو- ځوان اوژ نې ته پلار ، تره ، مشرور ور او یا نور خپلوان په خپل کلی یا یو بل ځای کې یوه جلۍ چې د دوی خوښه وي په نامه کړي او دخوښېد و او مر کې له لېږلو نه وروسته د موا فقې په صورت کې خونی پر ې وا چوي او د توپکو ډزې و کړ ي کلی او ولس خبر شي چې پلا نکی یې پلا نکی ته وکړ ه ، د هلک خپلوان دخو نی له اچولو وروسته د جلکۍ پلار ته ولور او خواړه او به ور ر سوي ، کله چې خواړه او بهاوو لورورورسېږي له دې وروسته د جلکۍ دواده کولو او د هلک کورته دراوړ لور سم پر ځای کېږي او خوړه یې بانديې کېږي ، دوا ده په دود کې د هلک خپلوانو ته د جلکۍ پلاردسما لو نه ور کو ي ، خپل زوم تـه بېر سره په کالیو اولنګۍ یو سور دسمال هم کوي چې د ښه به یې سره *

سره په‌خندا او خوشالۍ ژوند کوي ما ته دې خدای مرگ راکړي که چېرې سې‌د وا ړه يو ځای په تېر گيو او چاړ و تهوك توك ياد پنځه ۀزي په کړ توسو (کار توسو) سوروي او بژه نه کړه که ترهغې پورې زه روغه او جوړه ورسره وکم، پېښېږي چې کوم سه‌ورځ يو ترېو ر يا بل شوك دا پيغو راکړي چې ته ژوند دی يې او نکاح کړ يې و رتينه (ارتينه) دې د بل سره ده . له‌دې کبله د ناموس په سرروغه په منگلو کې نه‌منل کېږي اودا ډېره زوره وره بدي ده چې يو او بل سره پرې ستهوي . »

## (*) خلوسه پېغلۍ تښتول :

که څوك د چا پېغله او را وخورچې چا ته لا واده او په نامه شوې نه وي و تښتوي د جلکی پلار ورونه او نور خپلوان په‌دې بد عمل چې ور سره شوی ډېر قهرجن کېږي او وايي : « دې سپکو خلکو او زموږ خپلې خور اولور زموږ نوم په کلي اوقام کې بد کړ ، خپل پردي ته يې شرمينده او سرتهو تی کړو ، اې خدايه په چا کې داسې بدتکړی او بد

---

* لماره وايه. سر بېره پردې پخواو وخت کې چې د سمالونه نه‌وو د جلکی پلار به د هلك د لوري را غليو کسانو ته‌د رخت د سرې تو تي نه جوړ شوي دسمالونه ( و روځی او ژوم ) ورکول چې په حقيقت کی دا سور ر يمال دوی د يوې اصطلاح په‌ډول داسې اړولی چې پلا نکی د سره لما ره بنځه وکړه يعنی کونږه يې نه‌ده ځا نته وا ده کړ ي بلکې پېغله ده...

(*) هغه پېغله چې واده شوې نه وي او نه چاغړ پرې کـړی وي يعنې دواده غږ پرې نه‌وي شوی يا چا ته په نامه شوې نه‌وي :

پـه‌مـتـيـز تـوب د رسـره نـه‌شـم      پـه پـاکـه‌مـينـه‌د رسـره شـم شـو چـې يـمـه

پټکې پیدا او لوی مه کړې چې خپلوان پرې وشرمېږي ». له دې جوړیږي چې د خوانې او پیغلې جلکې تښتول ډیر سخت پېښو ردی دخلو سه پیغلې د تښتو او نرخ دادی: هلک او جلکی به دوار ه سره یو ځای سري او هم په هر وخت سر کله ددوارو تو پې رنګوي او دوی سره مخې کوي په دې ډول دد شمنو تر منځ بدي ور کیږي. که چیرې جلکی او هلك دوار ه پیدا نه شي ، د هلك خپلوان ډار بیږي وایي موږ د جاکې خپلوانو ته د جلکې په تښتولو شرم وراړ ولی دی خامخا به مو پرې سره کړي له دې کبله د جلکې خپلوانو ته ننواتې دروغې د پاره ورلیږي او ورته وایې زموږ زوی او ورور ډیر بد اوله شرمه ډك کار کړی دی موږ له شرمه تا سوته پورته کتلې نه شو او نه په مخه درتلای شو ، ددې له پاره چې موږ اوتاسې در-اتلو نکې بدۍ او بې ځایه مالي او ځاني زیانو نو نه سره بچ او خلاص شو موږ غواړو چې د پښتنو د نرخ سره سمه روغه درسره وکړو.
که د جلکې خپلوانو بدۍ ته زړه نه وي دد وی ننواتې منې اود روغې له پاره سر که سره کوي ، سر که د قام د نرخ سره سمه داسې پریکړه کوي: د هلك خپلوان به د جلکې خپلوانـو ته د وې خلو سه پیغلې ور کوي یوه د جلکې په بدل کې او بله به یې په بدو کې که جلکې نه وي نو به ددوه سړیو پور ور کوي که دواړو خوا و د سر کې دا نرخ ومانه نو له بدۍ نه سره خلا صیږي.

## غیږ والی پېغلې تښتول :

که کوم تن د یو چا د اسې خور اولور وتښتوله چې هغه یې کوم بل چا ته ور کړې او په نامه کړې وي ، نو ددې زیات بد عمل په اثر د جلکې پلار ګنې خو پریږده خسر ګنې یې هم لا ډیره زیاته پرې خوا شینې کیږي او وایي زموږ غیږ وهلې ښځه یې تښتولې ده، پلا-

راوورونه یې که غم ونه خوري نو بیا یې هم نه پر پرېږدي . نو د غېږ وهلې پېغلې د تښتو لو نرخ په منګلو کې ترخلو سه تښتول شوې پېغلې د روند او سخت دی ، نرخ یې کټ مټ د مېړه و ښې ښځې د تښتو لو په شان دی روغه یې هم په هماغه ډول ده د زیاتو معلوماتو او پوهېدو له پاره دې د مېړه و ښې ښځې د تښتو او نرخ وکتل شي .

## غلا :

په منګلو کې که څوك د چا څخه غلا (حیوانات ، جنس ، پیسې) وکړي او بیا پرې شیره (اثبات) شي نو دې ناوړه عمل له امله دا سړی د شرمه چاته ستر ګې نه شي پورته کولای په لار چې روان وي واړه او ځیږه ګوته پسې سیخوي چې غل دی ر ښتیا هم غلا بد کار دی ، په منګلو کې د غلا نرخ نګین دی غل به د مال خښتن ته نګین ور کوي یعنی یو په نه پهدغلا مال ور کوي که غل منکر شي نو به په قرآن سوګند ور ته کوي چې ستا مال ما غلا کړی نه دی ، که غله سر پرې کولو (په قرآن سوګند خوړ لو ته) ته غاړه کېږدي او وایي ما غلا نه ده کړې نو په د اسې صورت کې د مال خښتن د غله په مال او سر صرفه نه کوي څنګه چې کولای شي خپل ځان روغوي او خپل غچ او کسات اخلي ، یعنی د نرخ سره سم د هغه سر پر یکوي ، او که منکر شي او ایتو به یو سی د مال خښتن پسی ګرزي لاس یې چې بر شي په غلا یې وژ نی .

## مځکې غلا :

که څوك د چا مځکه د شا پې په نوم غلا کړي او د مځکې خاوند دعوه پرې وکړي نو د دې دعوې د فیصلې له پاره دواړه

تنه اول (۱) پاخه سره کوي مرکه را غواړي کتوه با ندي
کوي له څو ورځو مړ ی ور کولو څخه وروسته مرکې ته خواله
سره شوروي . مرکچیان د دوی خبر ې اوري او بیا د و ی
له خپل منځ نه رخصت کوي ، مرکه له غور او فیصلې ورو سته
د نرخ سره سم داسې پو یکړې ته مد یا ن خپـل حضو ر تـه را
غواړي او د نرخ له مخې داسې فیصله ورته بیان کوي :

د مځکې خاوند به دعوه گیرته په او وه سر پرې کو ي ځکه
چې شخه ، مځکه او زریو مثال لري ، که د مځکې خښتن په اووه
سرو رنه کړ او وتیښ نودعوه گیر دعوه گټي ا و مځکه یې خپله
کیږي ، که دعوه گیر ا یتو به (۲) یوو ړه اوو وایی چې ستا له
حق او مځکې نه ماوساتې ماستا مځکه نه دغلا کړې نو مرکچیان
ده ته بیا په او وه سر تړي که په اووه یې سرور کړ نومځکه
یې بیا هم وگټله که سریې ورنه کړ نود عوه یې سمه نه ده ·
مځکه به خپل خښتن ته ور کوي . که د مځکې خښتن په او وه سر

---

(۱) منگلو کې مرکه په دوه ډوله کیږي . سړه او تود ه :
که مد یان ډو ډۍ مر کې ته ور کې او کتوه با ندې کې تو ده ده ، که
ډ وډۍ ور نه کړي سړ ه ده (۲) منکر یدل ، نه منل څو ك چې منکر شي
مر کوال هغه ته سرتړي یعنې په قرآن پاك بد قسم او سو گند
خوري ، قسم او سو گند د موضوع په اهمیت پورې ار تباط لري ،
په یو ه معامله کې یو سر ، په یوه کې او و ه سره ا و په ځینو
نو رو معاملو کې له دې نه زیات سرونه سره په قرآن مجید پرېکیږي
، د سر د تړلو نرخ ځانته ځانگړې بڼې او لا رې لري چې د بل
و خت له پاره به ځانگړ ې څیړ نه پرې و شي .

ور کړ نو دعوه دمځکې خښتن ګټي دامځکه وايي په خپله مځکه سر ورته پر پکوم ما قرآن نه پري وهی تاپه ناحقه راکی دعوا ګیر ته چې دمځکې خاوند په اووه سر پر ې کړ ي پـه د ې سوګند خوړ لود عواګیر قناعت کوي او مځکه خپل خښتن ته ور پر یږ د ي .

## مځکې لاندې کول :

که څوك دچا مځکه په زور سره لاندې کړي نو تر اوو تنو پورې سره په مري . که روغه کوي په اووه به سر و ر کو ي د مځکې دلاندې کولو نرخ دمځکې دغلا کولو د نرخ په شاندی که بدي سره کوي تراوو پورې له یو او بل نه مره وژنی که روغه کوي په پهاووه بهسر و نه یو او بل ته سره پریکوي.



# دجنګ او نرخ په وخت کې ځینې

## اصطلاح ګانې

**بند:**

په کلیو او بانډو کې د یوه سخت جنګ او جنجالي شخړې مؤقت بند یز ته بند (بدن، سوله، تیږه، متار که) وایي، د قام مشرانو او مخوردیو ېې تړا ګلي او معیني موده پاره د دواړو د ښمنو ډلو نه غواړي چې جنګ سره بس کړي. دا دې جګړې په وخت کې د عدم تجاوز قرارداد دی چې د واړي خواوې به وسلې په مځکه ایږدي، تر ټاکلي وخت پورې دا قرارداد څوک ماتولی نه شي که د د ښمنو ډلو نه

کوسې خوادا بند ما ت کړ او تیري ته یې لاس وغزاوه نود قام د پر بکړې سر هسم ناغه کیږي اوتا کلي ناغه به قام ته ور کوي.

**روغه :**

په قبا یلو کې د یو ې سختې بدی، جنجالی شخړ ې او پیښې ارمېشتې (دا یمی) حل ته چې د قام د نرخ او پر بکړ ې پهاساس منځ ته راځي روغهورته وا یي چې دا دخپلوۍ په پېو ند، پیسو په ورکولو یا دسپین- روبو په مخ او ننواتې تر سره کیږي.

**سوره :**

هغې بڼځې ته وا یی چې د روغې په وخت کې د قام د سپین روبو د پر بکړ ې له مخې د تیري کو ونکی له اوري نه یې مظلوم ته ور کوي کله کله داسې وا یی چې په بد و، سوزاو پو ر کې یې ور کړ ه.

**شمله :**

شمله هغه مالی څیزاو شی دی چې په روغه کې د زیات در نښت له پاره د یوه منده یې (مو د ه یې) له خوا مقابل لوري او طرف ته د مشرانو په اسرار ور کول کیږي، دې ته کله کله نیکه هم وا یی. دا شان په کو ر نیو کې دو یش په وخت کې د کهول مشر ته څه زیات شی ور کول د هغه د عزت او احترام لپاره شمله بلل کیږي لکه چې وا یی: احمد د کهول مشر دی د و یش او بیلتو ن په وخت کې یې هغه ته د خپلې برخې د پاسه شمله هم و کړ ه، په منګلو کې سر بېره پر شمله پټکی هم ور ته وا یی.

**تیږ ه :**

هغه قرار داد او بند یز دی چې د دوا ړو د ښمنو ډلو او پلر ینو تر منځ د سپین ر و بوا و مخو ر و له خو ا په مؤ قت یا دا یمی ډول د روغې جو ړ ې او اصطلاح له پاره تر سره کیږي او سو له منځه ته راځي او داسې وا یی: «تیږه یې کینښو د ه»، «تیږه یې ومنله او بد نې یې و کې».

## نوغه :

ناغه هغه مالي شی یا پیسې چې دد ښمنو او بد یدارو کسانو له یوه لوري څخه چې بند ، سوله او تیږه یې مات کړې ده او د قام د سپین ږو بوا و مخورو له پریکړې او وعدې نه یې د مخه سرغړولی په دې جرمانه محکوم کیږي او د قام د پریکړې په اساس د شخړې او بدۍ د نوعیت په اساس چې څه ډول ده لږه او ډیره ترې اخستل کیږي ، کله کله په کلیو او بانډو کې یو سړی چې پړ او ملامت شی یا یو خلاف کار و کړي هغه هم د کلیوالو او بانډ والو له خوا ناغه کیږي .

## کشنده :

که په کلیو او بانډو کې څوک سخته گناه او جرم و کړي او هغه تن د قوم د پریکړې او سپین ږو بو په فیصله سره د دې له پاره چې د نورې بدۍ او بد وسخه و نیول شی دا مجرم له کور او وطن نه شړل کیږي او که چیرې دی ولاړ نه شی او مقابل لوری یې وگوري او ژنې یې ځکه ورته کشنده وایی . سر بیره پر دې د بدۍ د هوارو لو یا روغې له پاره چې د واړ ې تر بگنې ډلې سره ستې نه کړ ي نود قاتل خپلوان د مقتول خپلوانو ته یو تن له خپل منځ څخه ور په گوته کوي چې دا تن په وژنی او په نورو به غرض نه لري . دا ډول پښې که څه هم لږې وي خو سختې تما میږي .

## بو نډی

که دوه تنه دیو ې ښځې یا پیغلې دواده کو لو خیال واري او دیو ه سره هم د هغې په برخه کې د غږ کولو یا نکاح د سبقت دلیل موجود نه وي ، په دې ډول سره د دوی تر منځ د دې ښځې یا پیغلې په اثر بدې او د ښمنی پیدا کیږي ، نو د دې لپاره چې د بدۍ مخه و

نیول شي د قام مشران یې د پر بکړې له مخې دریم ګړي ته په
نکاح ورکوي اودا سې وایی چې د اشخه دې بونهٔ شي . سربېره
پردې بونهٔ دې تهوا یې چې یوه پېغله پریوه چاتورو لګوي
چې ما ته یې لاس راو چاوه یا یې په بده راته وکتل د پېغلې پهدې
تور لګو لو سره مقابل لوری وژل کیږي او پېغله ترسر ګه پورې
واده کیدای نه شي د پلار په کور کې پاتې کیږي وایی د پلا-
نکی لور بونهٔ ده سر یې په کالهٔ کې سپین شو.

بر مته :

په کلیو او بانډو کې که چاد یوه تن مال او نور شه‌و ړي
وي او حقدار د خپل مال غو ښتنه ترې وکړي او مقابل لوری یې د
یوې بانې په اثر ور نه کړي اود حق غښتن په‌دې پوه شي چې نه
یې را کوي نو په دې لته کې کیږي چې کله به‌ مې د هغه په مال
لاس برشي ، که‌مال یې څښتن ترلا سه کړاو مقابل لوری ورته
راشي چې‌مال مې را کړه. دی ورته وا یی زما حق هم‌را کړه که
نه‌مال دې ما بر مته کړی دی کله چې‌زما حق را ورسوې ستا بر-
مته کړی به‌هم در کړای شي . بر سېره پر دې کله کله داسې
پېښیږي چې له‌دوو مدیا نو نه مرکچیان مال دجوړې له‌پاره په
برمته کې و اخلی اودروغې اوفیصلې نه‌ورو سته دامال کوم
مرکچې چې وړی وي، دمال څښتن‌چې‌ور شي او ترې وېې غوا ړي
او مرکچې هغه‌ته‌ا نې بانې وکړي چې اوس نشته بیا بل وخت‌را شه په
دې ډول که‌مرکچې د برمتې مال خپل څښتن ته په خوواري ور-
تللو سره ور نه کړي نو څښتن یې د مرکچې ورور یا نږدې خپلوان
خپلوی که د.هغو په‌خو له یې ور نه کړ صبرور ته کوي ، که‌په‌مال
یا سړی یې لاس بر شي هغه دخپل برمته شوي مال په عوض کې

برمته کوي، مرکچي چې ورته راشي اومال وغواړي دی هم خپل مال ترې غواړي البته دا برمته یوځانګړی شکل لري چې پخوانی حق پرې اثبات کیږي .

برسېره پردې برمته دې ته وایي چې مرکچیان اونرخي خلك دوو مدیانوته د نرخ دویلو نه مخکې ووايي ، ترهغې موږ ستاسو دروغې له پاره نرخ نه وایو څومو چې برمته را کړې نه وي مو ده یان برمتې ورکولو ته غاړه ایږدي اومرکچیان یې ترې اخلي ، په منګاو کې توپك په برمته کې اخستل کیږي ، کله چې نرخیان د نرخ سره سمه لیار تېره کړي اودواړه مدیان قناعت وکړي نو برمته یې بیرته ورکول کیږي، که چیرې یوتن په دې نرخ باندې قناعت ونه کړي نو برمته شوی توپك یامال او پیسې یې بیرته نه ورکول کیږي ځکه دمرکچیانو نرخ یې ونه مانه او هغه یې مات کړ . نو په دې سره برمته مرکچیان نه ورکوي. ددې مرکې د پاسه بله مرکه راغواړي اوپخوانی مرکه نوې مرکې ته وایي زموږ فیصله یې ونه منله مال یې موږ سره برمته کې شته تاسې بیا په نرخ باندې غور وکړی ء. برمته ددې لپاره اخستل کیږي چې دواړې خواوې باید روغه ومنی اوغاړه ورته کیږدي .

## مچلګه :

برمتې ته مچلګه هم ویل کیږي او کوم تو پیر نه لري په پکتیا کې ځینې قومونه برمته ، مچلګه او ا کتابه په یو ه معنا سره استعمالوي .

## ا کتابه :

دا هم د برمتې په شان دد ووتنو نه چې ترمنځ یې شخړه پېښه ده او دشخړې د هوارولو له پاره یې مرکه راغوښتې ده چې روغه

وکړي نو مرکچیان له دواړو ونه مال یا نغدې پیسې اخلي او تر هغې پورې یې برمته کوي (ساتي) څو چې نرخ ورته ووایي او دواړه تنه پرې قانع شي. له قناعت نه وروسته یې اکثا به ور کول کېږي مچلګه، برمته او اکثا به مرکچیان له دې امله ترې اخلي چې په مدیانو باندې سره بې باوره وي چې نرخ به و نه مني، مال او شته چې ترې واخلي نو د هغو په خپل مال باندې زړه سوځي نو د مرکچیانو مرکې ته غاړه ایږدي او نرخ چې ورته کړي یې مني یې.

**سوله :**

دادې بند (بدڼ) په شان دیوې سختې او جنجالي شخړې د پاره چې پورې وو رې دوې تر بګنې ډلې سره ولي او تر منځ یې دمړ د- کیو شین بارانوي د قام مشرانو د قرآن پاک په ورو ړو سره چې په سرو یې ایښې او سپین څادرونه ښوروي د شخړې ځای ته ځي او له دواړو - وتر بګنو ډلو نه غواړي چې سوله وکړي، دواړې دښمنې ډلې چې سپین ږیري او د هغو سره قرآن مجید و نه وویني د توپکو ډزې او جنګ بندوي له دې کبله سوله د دښمنو تر منځ مؤقت بند یا دایمي روغې ته وایي چې د قام د مشرانو پرېکړې په اثر منځ ته راځي.

د ووتر بګنو ډلو تر منځ چې په کلیوا و باندو کې یې سره جنګ وي د سولې د مشرانو د ورتګ په وخت کې چې دوی یې وګوري پوهېږي چې د بدڼ او سولې له پاره د قام مشران او مخور راغلل، نو یو نیم ځوان چې ښه او ښکلی غږ (آواز) لري داسې د جنګ حالت په غرنیو سندرو کې یادوي :

ووړ کیه! وولې (هلې) خودې خدای مل شه
چې درنې خېجې غوږ وروخړ ګړ دونه

جنګ‌دې جوس، پټی ته روغی (راغی)
وور کی څنګلې لګوي جوس ګټینه
تو پکو بیا غاړې رنې کړې
رانجکو پرې کړل دننډا نو وور کیو زړونه
په تور تو پک‌و یشتلی راشې
دې بې ننګی آوازدې مه را شه مینه
توره په‌لاس برې په‌غاړه
جانان روان‌دی‌دمیو ند غزاته ځینه

## سړه توده :

ددوو ننود پېښې شوې دعوې اوبدی دروغې له‌پاره کله چې مرکه راو غوښتل شی ، که‌مرکې ته‌یې دوه‌ی نه‌سره ور کولو نو په سړه نرخ ورته‌وا یی که یې‌مر کی ته کټوه‌سره په با ندې کړه‌اوښه غوړه مړی (دو دی) بې و ر کـو لـه نـو وا یې په توده یې سره کسو ، مرکچیا ن شوور څې دوه‌ی خو ري او بیا نرخ وا یې دې حال ته‌توده وا یی .

## خلوت :

دد و و مدیا نو ترمنځ کله چې مر کچیان مرکه وکړي اومو- ضوع یې دقام د نرخ سره سمه فیصله کړ ي او دواړه مدیا ن په نرخ باندې‌چی دمر کچیانو له خوا اور ته‌و یل شو ی قناعت و کړي اوهغه په‌مینه سره ومنی ، نو دروغې نه‌ورو سته دواړه‌مد- یان په خوښه اوخو شالی ځه‌اند ازه نغدې پیسې مر کچیا نو ته دهغوی دعز ت له‌پاره ورکوي چې دې ته‌خلوت ویل کیږي . د منګلو په قام کې که‌په‌او سنیو کالونو کې له کوم سپین ږ یر ی نه‌چې عمر یې اتیا کلو ته‌رسیدلی‌وي پو ښتنه‌وشی نودا اتیا کلن

سپین ږیري وايي پخوا چې پېسو دومره رواج نه درلود، منګلو به مرکچیانو ته دخلوت په نوم دزیات درنښت له پاره پټکي، لنګۍ یا څادر ورکول خو ماته معلومه نه ده چې دا به څو کاله دمخه وي .

## خوله ښورول :

په کلیوا و بانډو کې خوله ښورول دې ته وايي چې دوه تنه مدعیان دخپلې ورپېښې شوې معاملې دحل له پاره مرکچیانو ته په خپله ګټه دموضوع او پېښې په ارتباط خبرې وکړي او خپله دعوه ورته جوته کړي. ددوی له خبرو کولو وروسته چې مرکې ته یې خوله وښوروله د مرکې له منځه نه ځي او مرکه په موضوع باندې غور کوي اود نرخ سره یې سمه فیصله کوي.

## * سته :

په کلیوا و بانډو کې که دوی تربګنۍ اودښمنۍ ډلې په یوه ورپېښه شوې بدۍ باندې داسې کاکړه بدي سره وکړي چې بیخي سره مړه کړي او نورغړي ورپاتې نشي او سره میراته یې شي. سته ورته وايي یعنې سره سته ول .

## دوو ته کیناستل :

دوه تنه چې ترمنځ یې یوه معامله پېښه شي اودومره لویه

---

* دونو بیخ ته سته ویل کیږي لکه د خبرې، لمنځې، سپیداره او ولې سته ، داشان سته دانسان وجود او تنې ته هم کله کله وايي ، دکاله ښځې یې په ځینو ختو کې د ښیرا کولو په وخت کې داسې استعمالوي :«اې شوله سته دې وخېژه»،«اې شوله دا سته سته دې ورکه شه « ،« دا بې ډوله سته دې تر خاورولاندې شه . »

نه‌وي نوا يـى راځه‌د ووته سره کينو هغو چې خه‌را وويل و به يې منو ، او يې سر کـې ته ضرورت نشته، دوه يې چې را خلا صه کړي هغه سمه ده.

## دوو ته‌خو له ښورول :

دوه مد يان چې دمر کې زوراوقوت ونه‌اري يعنى خواروي نو خپله موضوع باندې د کلي‌دووتنو ته‌خبري کوي اودادوه کلیوال نرخ ورته وايي اوهغه يې منى .

## پو ر :

هغه نغدې پيسې ياما ل‌چې دمر کې له‌خوا نه په‌ظالم اوتيري کوو نکى باندې ايښو دل کيږي او مقا بل لوري ته يې ور کول ضروري کار دى چې بدي پرې خلاصيږي . دې ته سوزهم ويل کيږي يعنې دمړه دوينو بيې ته‌پورويل کيږي نو دلته‌پوردمړه دوينې بيې اوقيمت ته‌وايي .

## تو ره سپينه :

په کليو کې ديوې موضوع دسپينو لوله پاره چې ددوو تنو تر منځ پېښه شي ، که يويې نه منى اوبل وايي له‌ما سره دتيرى کړى ، ددې دپاره چې‌منځ کې يې روغه‌سره راشي ،نود وى‌سره وايي موږخوسره نه‌جوړيږوتو ره سپينه به سره وکړو چې څوك ملامت دى ،توري سپينې نه‌مقصد دادى چې مظلو م وا يې له‌ما سره تيرى شوى اوظالم وايي مانه‌دى کړى ددې لپاره چې‌سپين اوتورمعلوم شي‌نوا يي دووته به‌سره کښينواوتوره سپينه به‌سره وکړو ، البته داپه ډېرو کوچنيو معا ملو کې ترسره کيږي .

## ددوو منل :

په قبا يلو کې‌که دچا تر منځ يوه‌وړه پېښه پيدا شي اودمر کې

ایجاب ونه کړي پېداسې حالت کی د پیښې داصلاح اوروغې له پاره دووتنوته کښېنی اوخپله توره سپینه معلوموي ، هغه دوه چې نورو دووته ناست دي موضوع په نرخ سره ورته خلا صوي اومد یان يې منی .

## توا غ :

په کلیو او بانډو کې د سړه اوواده دخا وند ا نو سره ددوی نږ دې خپل خپلوان د نغد وپیسو مر سته او کومک کوي چې دې مرستې ته تواغ وایی ، داشان یو سړی چې چاته ډېرتاوان وکړي وایی ډیرتواغ یې ور ته وکړ .

## په ځلی در ول :

په کلیو او بانډو کې ، دد وو تنوترمنځ دور پیښې شوې موضوع دروغې له پاره کله چې مر که راوغوښتل شی مر کې ته وایی په ځلی به مو سره دروی ء یعنی سم نرخ به تېروی ء که نرخ کوږ وي مد یان يې نه منی نو وایی په ځلی یې سم وه نه درولو ، مر که ماته ده موږ یې نه منو ، له دې کبله دو همه مر که د ځلی دسمودرېد وله پاره راغو ښتل کېږي .

## * اول پوخه :

دواړه مده یان چې د موضوع دهوا رو نوله پاره مر کچیان

---

*په منګلو کې که په یوه کلی یا پلر ینه کې دوه تنه مد یان مر که راوغواړي اوهغوته دالولو پخو کتوه با ندی کړي ، دا دوه مد یان هرومرود مر کې اوجر ګې پرغړ یو برسیره د کلی مشران اود کور په سر یو تن خپلې ډو ډۍ ته را غواړي ، د اڅکه دوی وایی چې مر کې ته د کلې د مشرا نو اود کور پهسرد یو تن راغوښتل *

سره را وغواړي او کتو سره باندې کی ، وایی الول پو خه یې سره شروع کړل .



---

* داما نا لري چې مړ که یوازې او ګوښې پاتې نه شی ، خو چې مړ که دلته و ي د هغو با يد د سړو په کښېناستو سره د ر نښت او عزت و شی

سالم روح په سالم بدن کې وي

# * په ټولنه کې دلو بوارزښت

لکه څنګه چې غذا، او به، موسيقي، ښوونه او روزنه د بشر په ژوندـ

---

* په منګلو کې لو بو ته مستي اولېږي وايي . لېبه اولېږي د مسخرو او بازيو په مانا هم استعمالېږي لکه : احمده! څه لېږې دې شروع کړې دي، د پنځې (ناستې) جامې خو دې پښتورګي لاخندي (خندا) نه وا چول. مستي او مستي د لوبې او لوبو په مانا هم دي لکه: راځئ چې مستي سره وکړو ويا په ډمې سره وولو يا په سپښتې (بېږي) او يا بهختکي سره وکړو .

انه کې په زړه پورې نقش اورول لري، دغه شان لوبې او سپورت هم د انسان د ژوند یو ضروري جز دی، انسانانو له ډیرې څنډه نې زمانې نه د خپلو غړیو د ودې، بدنې روزنې او په دښمن باندې د غلبې او بریالیتوب په خاطر ډول ډول سپورتونه او لوبې رامنځ ته کړې دي، د وخت او زمانې په تیریدو سره یې د غو لوبو ته اصلاح او انکشاف ورکړی او له یوه نسل نه بل ته په میراث پاتې شوې او ترموږ پورې په غوره بڼه او شکل رارسیدلې. که څه هم فلاسفه و، سیاستمدارانو، تولنپوهانو، ډاکترانو، فزیولوجستانو او نورو ډیرو پوهانو د سپورت او لوبو د اهمیت او گټو په باره کې ډول ډول نظر یې ورکړې دي، خو ټول په دې نظر باندې سره متفق دي چې سپورت او لوبې له هرې خوا نه د انسان د وجود له پاره گټورې دي.

په دې برخه کې مارشال «هندنبرگ» د آلمان فقید جمهور رئیس داسې ویلي دي:

«په هغه هیواد او ملت کې چې سپورت او ورزش وجود لري، ټول کولای شي چې د ضرورت او اړتیا په وخت کې عسکر شي او خپله مقدسه خاوره وساتي».

د لوبو او سپورت اهمیت نه یوازې د خلکو د صحت اوروغتیا له درکه دی، بلکې د روحي تقویې یو غوره او مهم عنصر دی، له دې څایه ده چې سپورت د پېړیو په اوږدو کې د دولس د زیاتې علاقې او مینې سره مخامخ ؤ او نن ورځ ورسره علاقه تردې پورې ده چې په رازراز عصري او مودرنو وسایلو سره اجرا کیږي.

که وغواړو چې د سپورت په باره کې څیړنه وکړو لازمه ده چې د موضوع مخ ار غونو پېژندو او د څنډه ن یو نان خوا ته واړوا و تر هغې پورې باید د موضوع لمن په غوره ټکیو کې و نغاړو په دې وسیلې سره

په ځانونو ولوبو ډیرو ماهرو سوو، په دغه وخت دی لوبو سره ښکار او په دې او جنګ ادای

په ځان دا ولمپ دغرولنو ته ورسوو، په دې ډول سره کولای شو چې دغي انساني پديدې د پيل او شروع ټکی او نقطه پیدا موسو، دا ځکه چې څېړونکي یونان د لوبو نیولو بو (اولمپیا) زانګو او میدان دی چې هغوته يې د کمیت او کیفیت په لحاظ یو خاص رونق ورکړ (١)

که څه هم څېړونکي پو هان د اولمپیک څنګه نه ننداره ګانو ی چلو نې اولونی تاریخ یې ٧٧٦ق-م ښيي، خو ځېنې نور چې د هغو اسنا د په نو يو نظر يو بنادي د سپورت موجو دیت د تاریخ نه ډېر پخواد - ١٢٥٣ ق-م او ٨٨٤ق-م ګڼي ٠ دا شان د یونان په څنګه نو نکاو نو او کیسو کې د (هرکلیس) جها ن پهلوان، ایګرګوس داسپارت قانون ایښود ونکی او زعیم ایفیتو س السیس او پهلوس څوا ن (چې په هیپود امیا رښکلې جلکی با ند ې چې د هغه وخت د پا دشاه الو یوس لور وه مین و) نوموړی د اولمپیا د لوبو نیولو بو د سپتکر ینو په ډله کې راغلي دي، د یونان د مشهور شاعر همرد «ایلیاد» او «ادیسه» په کتابو نو کې دغې ډول نیولو ، منډې وهلو، د ګاډی او عرادې چلونې او ټکس وهلو نو سو نه د جزیاتو په تفصیل سره ذکر او بیان شوي دي (٢). په لنډ و ټکیو کې به وو ایو چې د رومیا نو په وخت کې د دغو لو بود ننداروځای نو یو لو بو ونیو، سره له دې د دغو زیاتو او اوږ دوپېړیو په موده کې دا لو بې د نړی د زیاتو والسو نو او خلکو د سرګرمي او مینې سبب ګرځیدلې وې ، داو جه وه چې د یونان دا لو بې یا په بله ژبه د اولمپیا د لو بو د ننداره تجلیل د (١٩) پېړی په اخېر کې د نړی د زیاتو والسو نو په غوښتنه

---

(١) وګورئ، فولکلور مجله، ١٣٥٥ کال، څلورمه ګڼه.

(٢) وګورئ فولکلور مجله ، ١٣٥٥ کال ، څلورمه ګڼه .

په هماغه بڼه وروسته له څلوروکالو پېل شو او تر دا پروسږ کال پورې په مسکو کې په بریا لیتوب سره تر سره شوې ...

زموږ د ګران هیواد عنعنوي لوبو د پېل او شروع په باره کې چې نن ورځ د هیواد په بېلو بېلو برخو کې په لږ او ډېر تو پیرسره وجود لري، باید ووایو چې ددې موضوع د پاره په لومړي سر کې هغه څندني کیسې (*) او نکلونه تر مطالعې او څېړنې لاندې ونیول شي چې ددې تاریخي خاورې داو سیدونکو یعنې اریا یانو نه را پاتې شوي دي .

---

(*) لکه څنګه چې خلك د لنډیو ، پاسونو (سر و کیو)، متلونو (ضرب الامثالونو)، چار بیتوا وبدلو سره مینه او علاقه لري دغه شان له کیسو (داستانونو) او نکلونو سره هم مینه لري ، ددغو کیسو او نکلونو چې ویوونکي یې معلوم نه دي په شفاهي ډول له یو نسل نه بل نسل ته انتقال موسی ، د فو لکلور د پوهانو له نظره ډېر غوره او مهم دي او خورا ارزښت لري، دا په حقیقت کې څنګه هنرډی چې بشرو رسره سرراو کار لري ، دغه متلونه او نکلونه سره له دې چې د خرافاتو او مبالغې نه ډك دي او له حقیقت نه لري معلومېږي خو دما قبل التاریخ نه تر اوسه پورې یو لړ تجربې او بشري عواطف په کې منعکس شوي دي .

دغه کیسې او نکلونه چې کله کله دیوه لوی حیوان لکه ښامار او خیالي موجود پېر ي او د یو په برخه کې وي ، کله کله د ډېرې سختې سوې مینې او عشق په باره کې وي چې په دې کې دیو څوان او پیغلې د مینې داستان ، هجر او نوري سختې بیانیږي ، کله کله داکیسې او متلونه ملي رنګ لري او دا یشار *

. ددغو نکلونو او کیسو دمطالعې نه څرګندیږي چې پيل يې دماقبل التاریخ دورې ته رسیږي انعکاس يې داو یستا او ویدا په سرودونو اوځینو نورو کتابونو کې ليدل کیږي ، مشهور قهرمانان اوپهلوانان يې زال ، سهراب ، ګرشاسپ ، امیر کروړ او نور دي . دامیرو کروړ جهان پهلوان په باره کې راوړل شوي دي :

« امیر کروړ دامیر پولاد سوريزوی وچې په کال ۱۳۹ هـ دغور په مندیش کې امیر شواوجهان پهلوان يې باله، واېي چې د غور کوټونه اود بالشتان اوخیسار او تمرانمانۍ اوبر کوشک يې ونیول اودرسالت له کهوله يې پهخلافت کې ډیر کومکونه وکړل نقل کاچې امیر کروړ ډیر غښتلی او پهلوان واو په یوه تن له سلو جنګا وړو سره جنګېده ، ځکه يې نو کروړ باله چې معنايې ده کلك او سخت (۲) » .

* دامیرکروړجهان پهلوان ددغه نوم دګټلو له پاره ،دده خپل شعر چې پټې خزانې رانقل کړ دی اوپه تاریخ سوري کې

---

* میړانې، مبارزې او فدا کارۍ اووطن پالنې خبرې پکې وي. په او سنۍ زمانه کې سره له دې چې دغو کیسو خپل ارزښت له لاسه ورکړی، خوداچې دځینونو انسانو داحساساتو او عقید ـ ونه بیان کوي ، په حقیقت کې لرغونی مدنیتونه دنن و رځې له مدنیتونو سره تړي ( وګورۍ ادبیات مردم ، د شفیق وجدان تالیف ) .

(۲) حبیبی عبدالحی ، د پښتواد بیاتو تاریخ دوهم ټوك ، ۸۰ مخ

* امیرکروړ سربېره پردې چې یوغوښتلی پهلوان اوکلك ځوانو، ډیر عادل اوضابط اودښې وینا خاوندو ، ده به هر کله شعرونه *

محمد ابن علی البستی داسې کښلی دی چې دعباسی دعوت په جنگو
نوکې چې امیر کروړ ډیرې سوبې وکړې نو یې دا بیتونه وویل
چې ویاړنه یې بولی :

زه یم زمری په دی نړی له ما اتل(۱) نشته
په هندو سند و پر تخار او پر کابل نشته
بل په زابل نشته له ما اتل نشته

غشی دمن مې ځی بر پښنا په میر څمنو باندې
په ژوبله یو نم یرغالم پر تیښتیدنو باندې* په ماتیدونه باندې
له ما اتل نشته

زما د بریو پر خول تاویږي هسك په نمنځ ؤ په ویاړ
داس له سووسې مځکه ریږدي غرونه کاندي لتاړ
کړم ایوادونه اوجاړ له ما اتل نشته

زما دتورې تر شپول لاندې دی هرات وجروم
غرج و بامیا نو و تخار بولی نوم زما په اودوم
زه پیژندوی یم په روم له ما اتل نشته

پر مروزما غشی لونی ډاري دښن راخخه

---

* وویل (پورته یې نمونه چې په پښتو کې لومړنی حماسه شاید ورته وویل شی راوړل شوه)، امیر کروړ په کال ۱٥٤ هـ دپوشنج په جگړو کې مړ شوا او دده له مړینې نه وروسته دده زوی امیر ناصرا یوا دونه ظبط کړل او دغوراوسور اوبست اوزا میندا ور دمځکو خښتن شو (وگوریء پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوك .)

(۱) پهلوان.

د هریوال رود پر غاړو ځم تښتي پټ راڅخه
زړې زړن راڅخه له ما اتل نښته

د زرنج سوبه مې د توري په مخ سور وکړه
په باداري مې اوږ اوی د کول دسورو کړه
ستر مې تربور وکړه له ما اتل نښته

خپلو کړ واره لور پېرزوینه کوم
دوی په داد ینه ښه بامم ښه یې روزنه کوم
تل یې ودنه کوم
له ما ا تل نښته

پر لو یو غرو مې وینا د رومې نه په ځنګو په تال
نړی ځماده نوم مې بولي پردر یخ ستا یوال
په ور ځو شپو میا شتو کال
له ما اتل نښته (۲)

لکه چې د مخه موو ویل زموږ په هیواد کې لوبې اوسپورت له ډېر ځنګون اولرغونی وخت نه پیل دی او په اوسنی زمانه کی سر بیره د ژمې، اوړي اوپسرلی په لوبواس ځغلونه نیزه وهنه، مښلي کونه غېږ نیو نه، تیږه اچونه، توري وهنه، ارګی وهنه، وزلو به (بز-کشی) یخ باندې ښو ټیدل، سر باندی ښو ټیدل، مچوغنه (مچنوغزه) و یشتل پړی کشکول (ځکول)، توپ وهل، ځای و یشتل، ډیوو هل غنجلی وهل، تال وهل، متک ویشتل، نلی ویشتل، غوټې ویشتل، غوټو کی اودا سې نورې ډیرې په زړه پورې لوبې زموږ په ښکلی هیواد کې رواج دي چې د ګران هیواد د ګوټ ګوټ په خلکو کې په زیاته مینه سره اجرا کیږي نو داسې وایو :

---

(۲) پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک، ۸۲، ۸۳، ۸۴ مخونه .

لوبې په عمومي ډول د وجود تند رستی او روغتیا سره تړلو له پاره په زړه پورې تمرین ، منلی سپورت او ورزش دی، د لوبو په زړه پورې ننداري او پس منظرد ثقافتي ژوند ښکلې عکاسي لري ، او - بې د همځو لو (همزلیو) په زړو نو کې د مینې او محبت را بطې هم ساتي. د ما شو ما نو لو بې په حقیقت کې د لو یا نو څخه د پاتې شوی میراث تمر ین دی ، په او یه پښتو نخوا کې د موسم د تحول او تبدیل سره سم هر قام او ولس بېلې بېلې لو بې لري . په پښتو نخوا کې د لو بو شیان او د لو بو میدا نو نه ډېر دي او په زړه پورې کیسې هم لري. د مثال په ډول د پهلوا نی او غېږې نیولو په پښتنو هلکا نو ته د خپلو پلرو نوا و نیکو نو څخه په میراث پاتې شوې ده چې د آریا یا نو له وخت نه یې رواج تر موږ را رسېدلی دی . . .

لو بې هر ډول چې وي او په هره توګه چې اجرشي دا نسان د بدن له پاره داسې وسیله ده چې د رو غوالی او روغتیاد تامین ، قوت،مقاومت ، د موازنې او مهارت په برخه کې ګټور او ستر نقش لري ، لو بې او سپور تو نه د عقل د روزنې او ژ ند ا نه د پر مختګ او نېکوا خلا قو په برخه کې پوره ارزښت لري ، د ارادې د تقو یې او تنمیې سبب ګر زي.

جو ته ده چې د لو بو ، سپور تو نوا و د ما نو نو په واسطه د بدن غړ ي او عضلې تقویه کېږي ، د لو بو او مستیو په وا سطه د بدن صحت او سلامتیا تا مینېږي او د فکري روزنې په برخه کې غوره ارزښت لري څرنګه چې د لو بو او سپور تو نو په اثرد بدن غړي او عضلې په فعالیت راځي، همدغسې د سر ي ذهن ، حس،اراده او وا ك هم په فعالیت پیل کوي.

. لکه څنګه چې د فوټبال لوبه د بدن ټول غړي په فعاليت راولي او ذهني عمليې لکه د قت او د نظر سرعت په فعاليت اچوي ، له همد-ې کبله د فکر په تربيه کولو کې ډېرې موثرې او ګټورې مرستې سبب ګرزي .

د ګران هېواد په بېلو بېلو سيمو کې په ځانګړي يو او بېلو ډول لوبو لوبې رواج لري داسې چې ځينې سيمې ګډې او يو شان ځينې نورې سيمې بيا بېلې او مخصوصې ملي لوبې لري ...

دا په حقيقت نه ډېره اړې نه وي چې زموږ د هېواد له ملي لوبو څخه نورو د رنګ په تغيير او استفادې سره ګټه اخستې ده کله اوس په ځينو هېوادو کې د تورو هلو لوبه اجرا کېږي دا هغه لوبه ده چې په ځانونو او پخوا وخت کې زموږ خلکو له خوا اوګېود وهلو په وا سطه اجرا کېده ، داشان زموږ د هېواد ملي لوبې لکه داسا نوځغلول سپر لو (نېزه او موږې وهل ) ، تېږې اچول او داسې نورو لوبو څخه بهرنيو استفاده کړې او زموږ دغو ملي لوبو ته يې ځا-نګړی رنګ ور کړی دی چې په اوږده توګه په موږنه طريقه اجرا کېږي .

له دغو لوبو څخه چې زموږ په هېواد کې پخوا رواج وې دا حقيقت څرګندېږي چې زموږ د هېوادو ګړي ډېر غښتلي ، کلك پياوړي او زامتو جګړن ، سلحشور ، د برم او ستړو نومو نوخاو-ندان وو . که اوس زموږ په هېواد کې بېلې بېلې لوبې لکه وز-لوبه (بزکشي ) ، نېزه و هل د لرګيو و هلو لوبه ، تېږه اچول توپ اچول ، رسۍ او پړی کشکول او داسې نورې په سل ګونو لوبې ليدل کېږي دا د هغه وخت ميراث دی چې زموږ د هېو اد زامتو او سر غښتلو يو و ګړوخپل ځانو نه د دښمنانو او خونخوار-و غليما نو په مخ او مقابل کې مبارزې ته آماده کول ، څوچې

د غلیم مخې او یرغل ته په ډېره زړه ورتیا او مېړانه سره ودرېږي او په دې ډول خپل خوږ وطن او خوږه مېنه د هغو له یرغلونو نه په مېړانه او د مټ په قوت وساتي (۱) .

که زموږ هېواد وا لو د لرګیو لوبه درلوده، دا دې له پاره وه چې د تورو پر ځای یې د لرګیو، ډانګونو او کوتکو څخه کار اخست . د ډېرې اچولو لوبه هم همدا شان د ګولیو پر ځای چې د دښمن په لور او خوا او سنګرونو باندې اورېدلې د هغو نوکارېدې وړکاوه ، همدا اوس زموږ په هېواد کې ځینې داسې لوبې شته چې د ستر کچر او ماهیت له مخې ملي او وطني بڼه لري داد خارجي اثراتو څخه بېخي په امان دي، په ابتدايي او وطني سویه یې خپله اصلي بڼه ساتلې ده ...

ددې لنډې یادونې پر بنا موږ دلته یوازې د منګلو د یوې کوچنۍ سیمې (زما د کلي چې په کې پیدا شوی یم) لوبې چې ما له خپلو اڅو لیو سره په مینه کړې او یاد یې تر اوسه را سره پاتې دي څېړنه کوو ، له دې څخه دا حقیقت جوتېږي چې په پښتونخوا کې په زرګونو لوبې شته او راټولول یې د ولس او افغانانو په تیره د پښتنو د کلتوري ژوند د خوندي ساتلو لپاره ضروري کار دی .

هغه لوبې چې زموږ په کلي کې دود دي :

((زموږ کلی د منګلو (*) د لژې درې په بر سر کې پروت دی او« سیدګی» په نوم یادېږي)) ، کومې لوبې چې له ډېر ځنډ ن وخت نه

---

(۱) وګوری لمر مجله د شینه نهی لیکنه .

(*) منګلو قام د پکتیا ولایت په مرکز او غوږ منځ کې *

تراوسه پورې په کې رواج لري بلکه يې ساده اوا بتدايي ده او خپل فولکلور يک اصالت يې سا تلی دی . دا او بې که څه هم زموږ هېوا د په نورو ډېرو سيمو کې رواج لري په هغو سره خبرې نه شو کولای دا ځکه چې د هرې پښتنې سيمې او کلي د ما شوما نو لو بې لرې او ډېرې يو له بله سره تو پيرلري. دا بېلتون او تغيير هغه وخت سړي ته ښه جوتيدلی شي چې د هرې سيمې د ماشو ما نو لو بې را غونډې او بيا يې يو له بله سره د هرې ا ړخيزې خوا نه مقايسه کړي، هغه وخت يې په ورته والي او تو پير با ندې ښه پو هيد لی شي . هغه لو بې چې موږ يې دو س ا و تـوا ن پـه ا نـد ازه خبرلـی شـو دا د ي .

**سواره خپلی :**

دا لو به په منګلو کې سره خوله او کډکې وور کی (۱) په لا يه (۲) وخت کې په ډيره خو شالی سره کوي.

دا لو به د دووسيالو ډلو ترمنځ دا سې په مينه سره اجرا کېږي :

---

*پروت دی، له رخا ته ته يې ځکمنی (کورمه)، سېري، مکبل، له ر-لو بدو ته يې تو تا خېل، شمال ته يې ځاځی ا و جنوب ته يې ځدران او لوی خوست پروت دی .

د منګلو مشهورې اوښا متودرې لژه ، مېرزکه ، ګبر، زوړ کوټ منډتی ، ور ګوړه او ميدان خوله دی. منګل په دوو لويو پلرينو سو سی خپلو او جانی خپلو سره وېشل کيږي . سپين ږيري وايي چې منګل اته او اوه سوه کاله د مخه چې د وزو لو يې غېلې او رمې يې در لود لی د شيتکو دلاسه د بنو نه چې لک لرګی يې ور ته وا يه مخ پر خوست را کو چيد لی او د خوست نه د پکتيا تور وغر ته مخ پورته را غلی اود لی ميشته شوي .

(۱) هلکان، ما شو مان (۲) و زګا ر

ددغي لو بې له پاره کله چې د کلی ماشومان په مېنه سره ټول شي، ددوی له منځه نه دوه کلک او مشران هلکان د مېرانو په نوم خوښېږي (۳). کله چې مېران معلوم شي پاتې هلکان دوه دوه سره جوړه کېږي او مېرانو ته راځي. د هغو پېچو په اثر چې ځانو نه يې د لاس د ګوتو په واسطه د آسمان او مځکې يا په نورو نومونو معلوم کړي دي وايي: ((مځکه غواړی، که آسمان؟)) دواړه مېران چې په يوه لوړ ځای ناست دي يو او بل ته سره وايي ملګر يه! يو په کې خوښ کړه بل به بې زما له ويلو راته پاتې شي، له دې خبرو وروسته يو مېر وايي: ((وروره آسمان لوړ او جګ دی زه يې په سر ولاړ دی زه آسمان غواړم، دويم مېر په خندا ورته وايي: مځکه مسکينه ده موږ ژوند په کې کوو په ده يې سره مينه سره يې زموږ ژوند ته غېږ پرانيستې ده دا يې زما))
په دې ډول ټول هلکان په دووسيالو ډلو سره وېشل کېږي او د سوارې څپلې لوبې ته چمتو کېږي، مځکې د لو بې له اجرا نه لومړی وار سره معلومه وي چې څوك به اول لوبه اجرا کوي.
دوارد معلومو لو له پاره دواړه مېران يا شوت (٤) سره و هي يا تونډوچ اچوي کله چې د يوې ډلې لومړی وار په نصيب شي نو دوهمه ډله په ټا کلی ميدان او هوار درندکې په پښو د ريږي او څپلې ملاوې کړې کوي او لومړی ډله چې وار يې دی د پاسه په هر ملګري باندې چې ورسره جوړه شوی دی سوارېږي (سپر يږي) لومړی ډله چې د څپلو جوړه شو يو ملګر يو په شا باندې سواره شي، نو يو مېړه زړه له کاره وتلې مزرينه څپلی راخلي سو ا ره ملګري يې يوا و بل ته چې د پنځو پنځو يا لسو لسو ګزو (مترو) په اندازه له

---

(۳) انتخابېږي (٤) د وا ړې اصطلاح دې چې د لو بو د اصطلاح ګانو په لړکې به وښو دل شي.

یو او بل ته اړې دي سره اچوي او په لاسو یې نیسي. د هر یوه ته چې ښپلۍ د لاسه ولویږي سواره ماګري د سیالي ډلې د شا ته غورځي او منډې وهي، د سیالي ډلې کوم غړی چې ښپلۍ را واخلي د مقابل لوري کوم غړي چې ورته نږدې وي یا پرمخ ورشي پرې ولي یې، که کوم تن یې وویشت د سور یدوو ارد دوی په نصیب کیږي، که ښپلۍ یې خطا شوه نو بیا لومړۍ ډله د دوی په شا سوریږي او او بې ته دوام ورکوي. دا لوبه د دوار وسیالو ډلو تر منځ تر هغې پورې روانه وي څو چې یې زړه غواړي، سواره ښپلۍ ځکه ورته وایي چې د مزریو ته جوړې شوې ښپلۍ په واسطه دا لوبه ترسره کیږي.
دا لوبه پښوا په کلیوا او بانډو کې ډېره وه او هره ورځ به اماخولیو هلکانو په مینه سره کوله په او سنیو وختو کې یې هغه پښوا نی ډیر زیات باب (رواج) له لاسه ورکړی دی، مشران او لویان دا لوبه ځکه نه کوي چې د یو او بل پر شا سره سپریدل عیب او شرم ګڼي. له بابې خو اخنګه چې په دا لوبه کې منډې را منډې، کوزیده او راجګیده او ټوپ اچول په کې ترسره کیږي نو د وجود د پاره په زړه پورې سپورت دی چې لوبغاړي یې تندرست کیږي.

## له پړی یا پټکی نه ټوپ اچول:

د کلیوالی لوبو په لړ کې دا ډیره په زړه پورې لوبه ده، نه یوازې دا چې ووړ کی (۱) یې په خپلو منځو کې کوي، بلکې لوی او ځوانان یې هم کله کله په لایه وخت کې په ډیره مینه سره اجرا کوي او د اجرا کولو شکل یې داسې دی:

دا لوبه د دووډ لو ترمنځ په سیالی سره نه کیږي بلکې ټول راغلي لوبغاړي یې د کولو حق لري، په دې لوبه کې د ټوپ اچولو قوت او قدرت معلومیږي چې کوم تن ښه او زیات ټوپ مخ

---

(۱) هلکان



د پړي نه د ټوپ اچولو به

پورته اچولی شی . دلو بې دپیل نه مخکې یو هوار ځای چې نرم سول (ریګ) ولري یا یوشود یاره کړی پټی چې لوتې یې ماتې شوې وي ا نتخابېږي ، کله چې هلکان اوځو ا زان دې میدان ته راشی د میدان په یوه سرکې دوه هلکا ن یو لو ی پړی یادسر پنځه ګزی پټکی ددوا روسرو نوځخه دمځکې له مخ نه پورته په تکیو (۲) باندې نیسی اونور هلکان د پټی یا میدان له بل سر نه یو یو ورته را منډه کوي کله چې ورته را نږدې شی مخ پورته توپ وهی او له پړي یا پټکی نه هغې خواته اوړي، کېدا شی چې یو نیم تري توپ وا نه چولی شی او په کې بند شی .

کله چې د تکی (۳) نه توپ وو هی ، بل وار هلکان پړی یا پټکی دوړا نو سرو ته جګوي هلکان بیاد میدان یا پټی له سر نه ورته په تېزه منډه راځی کله چې ورته را نږدې شی مخ پورته توپ وهی له پټکی نه ا وړي ، دا شان د بل وار له پاره پټکې یا رسی او پړی د نامه په سر باندې نیول کېږي که له دې نه هم توپ هغې خواته واچوي د بل وار له پاره هلکان پټکی او پړی د ټټا نو په سر نیسی او هلکان ورته په منډه راځی اوتوپ تري اچوي دا لو به په حقیقت کې یو په زړه پورې سپورت دی چې دلوبغاړو وجود ډېرور سره غښتلی اوقوي کېږي، په دغه لوبه کې هم ځغاسته تر سره کېږي ا و هم توپ اچول، نو ځکه په زړه پورې ده .

## خوسی یا دټو پی وهل :

دا لو به دد وو سیا لـوا و حریفوډ لو تر منځ دمرلو (٤) نه ورو سته دا سې اجرا کېږي :

---

(۲) زنګا نه په ستر ګو (۳) زنګا نه ستر ګه (٤) په پچه ، شوت او تو ندوچ سره ډلې کېدل یا په دغو شیا نو سره ډلې اوګرو پو نه معلوم ېدل .

دو اړي سيالي ډلي چي د لوبي ميدان ته گډي شي ، يوه ډله دخاورو دټوپي د وهلو له پاره لوسری وار نيسی ، کله چي وار معلوم شی ، داډ له بهد ميدان په يوه سر کي دخاورو ټوپي جوړ- وي، کله چي ټوپي جوړه کړي دټوپي له لوري يوه ډ له اود ميدان له بل سر نه د ا بله ډله چي د ښي پښي غټي يا گاټي گوتي يي په لاسو کي تر شاه نيولي وي ميدان کی سره گډ يږي او هر يو تن له خپل جوړه شوي ملگري سره مخامخ کيږي د تڼکی (۱) په سرواو زنگنو سره يو بل وهی ، په دي ډول يو او بل سره سوځي يعني په د ي ټپل اووهلو کي کمزوری تن د پښي گوته دغو ر ـ ځيدوله امله ياله وېره نه پرېږدي، خوك چي گوته پر يږدي هغه سوی بلل کيږي او له ميدان نه ايستل کيږي، سوی تن دلوبي حق نه لري ، هغه ډله چي ټوپي يی جوړ کړي او په وار سره يي په برخه ده ټوپي ته غښتلي تن دروی چي د مقابل لوري نفريي ونه وهی ، که دمقابل لوري کوم تن په ډېره چالا کی سره ځان ټوپي ته راوړ سوي او هغه په ډير چل سره ټوپي ووهی يعنی دخاورو ټوپي په داسي حال کي رنگه کړي چي لاسوی نه وي او د پښي گوته يي په لاس سره نيولي وي او په کينه پښه ټوپي ووهی نو ټوپي يي تر ي و گټله او وارهم دلوسری ډلي څخه په دي ډول سره گټی . دوهمه ډله دميدان بل سرته راځی او دخاورو ټوپي جوړ وي دخاورو ټوپي چي جوړه کړي ددواړو ډلوجوړه شوي يا سره مرل شوي هلکان بيا خو سی نيسی يعنی دښي پښي گوتي په کيڼ لاس نيسی او دټوپي دوهلو له پاره په يوه او بل دزنگنو په وهلو او دښيو لاسو په واسطه د ښو له

(۱) دز نگا نه په سترگو .



دخوسی یا ټوپې وهلو لوبه

گوتو نه کېږي لاسونه سره خلاصوي ، په دې جنګ او و هلو کې بيا د مقابلې ډلې يو تن چې غښتلی وي او خوسی (خوسکی ، ګېلګی) يې بولي په ډېر چل د مقابل لوري ډلي له منځ نه ځان خلاصوي او تېرېږي وهي ، دخوسي لوبه ددوا ړو ډلو ترمنځ تر هغه وخته پورې روانه وي څو چې سترې شوي نه وي ، د دې لوبې د بريالیتوب له پاره هره ډله د تېرېږي وهل ځانته معلوم وي ، که يوه ډله لس واري تېرېږي رنګه کړي بله ډله يې اته واري ووهي نو هغه ډله چې تېرېږي يې لس واري وهلي بريالۍ ګڼل کېږي ځکه دخپلې سيالې ډلې نه يې دوې نومرې زياتې ګټلې دي .

ددغې لوبې ګټې ډېرې دي . لوبغاړي چې دلوبې په وخت کې يو او بل سره وهي ټول غړي او عضلې يې په حرکت راځي او د بدن هر غړی يې فعاليت کوي چې د روغتيا له پاره ډېر مؤثر او ګټور رول لوبوي .

دوهلو په وخت کې کمزوري ، بې زړه او زړ ور هم سره معلومېږي ، دخو ورځو په تمرين سره کمزوري هم زړه ور کېږي څنګه چې دالوبه دجنګ ښه لري نولوبغاړي يې له جنګ سره هم آشنا کېږي او په هلکانو کې دزړه ور توب حس زياتوي .

## د پکۍ ابۍ لوبه :

د خوسي د لوبې نه ور وسته واړه ماشومان د زياتې خوشالۍ او خوښۍ له پاره د«پکۍ ابۍ» لوبه هم کوي په دې لوبه کې هلکان دوې ډلې نه کېږي پخوا چې درې تنه يو لوري ته او درې تنه بل لوري ته ووږدې لوبې ته سره ګډېږي . ، له دې ور وسته دد وی له منځه نه يو هلک د «پکۍ ابۍ» په نوم کېنوي او سترګې يې پټوي .

ستر گي چې پټې کړي په ګونډه و کېني اودتکي په سر با ندې دلاس ګاته او د شهادت ګوته دد ايرې په شان ايږدي او دا کلمې په لوړ آواز وايي : « ذانه بېچکې ، ذانه بېچکې » د ذانه بېچکې په ويلو سره هلکان ددې ددو ګوتو په دايره کې د شهادت ګوته ور څخوي يا يې ور ننه باسي او همدا ذانه بېچکي وايي ، پکه ابي يې دګاتې اوشهادت ګوتې پهواسطه نيسي او څغه ترې ځان خلاصوي ، د کوم هلك ګوته چې پکه ابي و نيسي ستر ګې خلاصوي نيول شوی هلك دد ې پر ځای « پکه ابي » کيږي هغه هم په دې ډول سره کوښښ کوي چې بل تن و نيسي ، هلکان چې ذانه بېچکې وايي اوګوتې ددې په تکي و هي او ترې خلاص شي پکه ابي چې ستر ګې يې تړ لې او پټې دې په سر با ندې يې ددې له خلاصيدو او نيو لو نه هم و هي ، داچې پکه ابي پهوهلو و هلو ښه کيږي نو کوښښ کوي چې زر يو تن و نيسي ، دالو به ډيره خو ندو ره او خندا لرو نکې ده .

## ډمې و يشتل :

د الو به د کليو او با نډو دما شو ما نو د نو رو لو بو په شان ددوو سيا لو ډ لو ترمنځ دجوره کيدو او سر لو نه وروسته په يوه هوار خو ړ (لګيد ،سم ) کې چې زيا تې تيري ولري داسې په خوشالي پيل کيږي :

د لګيد په منځ کې دواړې ډ لې د شلو او پنځه و يشتو مترو په فاصله د يوې او يشتې يا يوې نيمې لو يشتې په اندازه اوږ دې او يو ه ګړ وزې په اندازه پلنې درې درې دا نې تيږې يوه او بلې په مقا بل کې په مځکه کې سخ پو رته لکوي اودغو لکو شوو تيږوته ډمې ويل کيږي ، د ډمو دو يشتلو له پاره په وار با ندې تـو نـد و چ

اچول کېږي هرې ډلې چې واروګا ته نوې هرغړی درېدرې دانی ګړ دغو ټوټاري له خوږ نه په لاس کې اخلي او د مقابلې ډلې لکې شوې ټیږي (ډمې یا ښکې) پهوار سره پرې ولی کېدای شی چې د دغې ډلې لوبغاړي دمقابلې ډلې درې واړه ډمی وولی او ړنګې یې کړي ، بیا یې مقابله ډلهو رته لکوي او هغه لوبغاړی ډله چې ټولې ښکې یې ویشتلې دي ولی ، که کومه ښکه یا ډمه ترې پاتې شی او وهې نه ولی نودویشتلو وار د وهمې ډلې ته ور رسېږي اوددې ډلې هر غړی درېدرې غوټې اوګړدی ټیږي رااخلی اود مقابلې سیالی ډلې ډمې پرې ولی او ړنګوي یې د ډمو دویشتلو اوبه ددواړوډلو ترمنځ تر هغه وخته پورې جریان لري څو چې یې زړه غواړي په پای کې هره ډله د ړنګوشویو ډمو شمېر نیسي، هرې ډلې چې زیاتې ړنګې کړې وي هغه ډله بریالۍ ده او مقابلې سیالۍ ډلې ته په پېغور سره واېی زموږ چمجی (چنجی) دې د رکې پاتې وي راته یې وساتی، دسیالې ډلې داپېغور پهمقابله ډله بد لګېږي اوخبرې سره اړوي کله کله یې ترمنځ جنګ سره جوړېږي اوپه دې لوبه کې وینې سره توئېږي دالوبه دلوبغاړیو دصحت اوروغتیا دپاره په زړه پورې سپورت ګڼل کېږي د تېږو اوګړدیو غوټارو په ویشتلو سره د وجود غړي په حرکت راځي ددغو حرکاتو په تمرین سره غړي غښتلي کېږي او دوجود روغتیا ته ګټه رسوي.

## کینې مینې کاغ کاغ :

په منګلو کې ډمې څوانان اوږنګی سره ولی ، دشپږو اواتو کلو هلکان چې ډمې سره وولی او دډمو له ویشتلو نه خلاص

شی، د زیا تې خوشالی له پاره د «کېښې مېښې کاغ کاغ» او به داسې سره کوي :

څلور او پنځه تنه کوچنی هلکان چې عمر یې د پنځو کالو نه تر اوو کالو یا اتو او نهو کالو نو پورې وي یو ځای کې ګړ د- ګو بڼه ددایرې په شکل سره کېنې یو هلك کېن لاس د منځ خوا ته او بل دوی اومخ شکته یې نیسي ورځیز نه بل هلك د هغه دلا- س څټ په ګاټه او شهادت ګوتو سره نیسي، په دې ډول سره ټول هلکان دواړه لاسونه لاندې باند سره چې دیو او بل لاسونه یې نیولی وي. نود او بې داجرا له پاره نیول شوي لاسونه پورته پور ته غورځوي او داسې وایي «کېښې مېښې، کېښې مېښې» څو واري چې کېښې مېښې په خوشالی سره په زوروایی نا بېره یو ووایي «کاغ کاغ، کاغ، کاغ»، د کاغ کاغ په ویلو سره دوی دیواو بل لاسونه پرېږدي او لوبه په خندا اوخوشالی پای ته رسیږي .

## مړده کیو ګټل:

د الو به په کلیو او بانډو کې دد وو سیالو ډلو تر منځ په خاص کیفیت سره داسې دخوښی په غرض تر سره کیږي .

د لوبې داجرا کولو او ترسره کولو له پاره پهاول کی یو هوار لوی میدان یا یوستر بام انتخابیږي، له دې وروسته بیا د بام او میدان په یوه سر کې لوی دایروي خط دد وو یادر یو ګزو (متر و) دقطر پهدر لو دلو سره دمیدان او بام پر مخ وباسی یا تیروي، ددې دایروي خط په منځ کې د تیږو نه جوړې شوې وړې ټاکې (مرده کی، توشلې) په یوه سمه لیکه ایښودل کیږي کله چې دخط(دایرې) په منځ کې ټاکې کېښو دل شی، له دې ورو سته

دد واړوډ لوتر منځ واراو لوړي نوبت په شوت(۱) ، تونډ-
وچ (۲) اوپچه سره معلو مېږي کومه ډله چې اول وارو نيسي
ددې ډلې له بغاړي كه پنځه تنه وي او که له دې نه زيات يا کم
وي دميدان اوبام له بل سره نه د تېږي لوی مړ د کی دخط لوري ته
را اچوي اوړغړ وي يې کهد کوم لو بغاړي مړد کی دخط اودا-
يري په منځ کې ودريږي هغه بنديږي اود لوبې حق ترهغه وخته
پورې نه لري څو چې يې ملګريو لوبغاړ وله خط نه دکو چنيو
ټاکو (تو شلو ، مړده کيو) په ويشتلو سره چې وارپرې ژوندی کړي نو
ټاکې ولی ، کله چې ټاکه وولی وارژو ندی کيږي ، دوار په ژوندي
کېدو سره د بندي ملګری مړ ده کی که له يوخطا شي بيا به يې بل
ملګرى په لوى مړده کی ولی اوله بنده به يې خلاصوي . لو بغاړيد
لو بې د قانون سره مجبور دي چې پنځه واره ټاکې د خط نه بهر ته
دميدان اوبام بل لوري ته وباسي ، كه ټاکې يې دخط اودا يرې
په منځ کې ونه ويشتلې نو داڼ له سوځی اود ټاکو د ويشتلواو
ګټلو وار دوهمی ډلې ته ورر سيږي ، داڼ له هم دميدان له سر نه
دخط اودا يرې په لورمړ د کی راا چوي اوپه ډ يره خوشالی سره
دخط په منځ کې کو چنی ټاکې ولی اووباسی يې ، كه ټاکې
څينې خطا شوې وار بياد بلې سيالې ډلې په برخه کيږي . د مړد-
کيو دا په زړه پورې لو به په هغه ډول ددواړو ډلو ترمنځ تر
هغه وخته پورې جريان لري څوچې ستړې شوې نه وي اوزړه بې

(۱) شوت(۲) تونډ وچ . دادلو بودا جرا په وخت کې خاصې
کلمې اوا صطلا حات دي چې د لو بودا صطلاح ګانو په لړ کې به و
ښود ل شي .

لو به کول غوا ړي ، دالو به بې له ماشو مانو څخه لوی ځوانان اوسړی هم په شوق سره کوي . دې لود بریا لیتوب او ېړي له پاره هره ډ له دو یشتل شو یو اوله خطانه دا یستل شو یو تا کـو شمېرسره نیسی، هرې ډلې چې زیاتې تا کې ویشتلې او ایستلې وي هغه بریالی ګڼل کېږي، بریالی ډله کله کله په خندا مګرد پیغور په ډول پرې ډلې ته وایی زموږ تا کې د ر کې وساتی ءچې خرا بې (خرا بې) یې نه کړی ء ، په دې پیغور کله کله د مقابلې ډ لې لو- بغا ړ وته تاوورځی او ترمنځ یې شخړه پېښېږي . دالو به په حقیقت کې یو ډ ېر ښه سپورت دی چې د لا سو غړ ي ورسره زیات په حر کت را- ځی ، د تنګ اورا تګ په وخت کې ټول وجود ور سره په فعالیت کې وي، دالو به د نورو کلیوالی لو بو په شان ځنګلونو او تېروخت کې هره ورځ د ژمی په شپو کې په مېنه سره ا جرا کېدله ، اوس د پخوا په شان دخلکو د مصروفیتو نوله امله هره ورځ نه سره کېږي خـو کله کله د ملګرو ترمنځ د سا عتېری له پاره پـه مینه سره اجرا کېږي او کول یې د ملګرو ترمینځ ښکلې ننداره برابروي .

## سپښتېی (بیلوی ه) ګټل :

دسپښتېو لو به د نورو لو بو په خلا ف ددوو سیالو ډ لو ترمنځ نه اجرا کېږي ، بلکې دد وواو خو تنو ترمنځ په داسې ډول سره کېږي ، چې هرخو ك دخپل ځان له پار ه سپښتې ګټی ، کله چـې ماشو مان له کورو نو نه دځان سره سپښتې د ګټلو له پاره راوړي او په یوه کوټ اوخو ندي ځای کې سره کېنی نو سپښتې داسې سره یو له بل نه ګټی :

دا څو تنه چې په خپل منځ کې سره حریفان دي یوه یوه بیلوی له جیبو نو نه را اخلی او یوه تن ته یې ورکوي هغه یې په لاس یا لپه

کښې نیسی مخ پورته یې اچوي او د مځکې پر مخ چې راولویږي
که څلور تنه وي نو دا څلور سپینتې د مځکې په مخ ګوري چې په
کومو پلوو نواو مخو نوولا ړې او وپرتې دي . که اله دغو څلور-
و بیلو یو نه یوه په چلک(۱) پاو، بله په بوك پلو او نورې دوې یوه
په خره او بله د آس په ډډه ودر یږي په دې څلورو سپینتیو کې د
هغې بیلوی خاوند د ویشتلو او ګټلو لومړی حق لري چې سپینتې
یې په آس دریدلې ده، دا ځکه چې آس په ټولو کې زورور دی د آس
ښښتن د نورو سپینتیو په ګټلو داسې پیل کوي . که د بوك پلو
سپینتې ورته نږدې وه او ل په هغه د خپلې سپینتې وار کوي او ولی
یې که د بوك پلو سپینتې یې په ویشتلو سره په چلك ، خر ، یا
آس لوریو واړ وله نو دا یې وګټله ، له دې وروسته د چلك پلو
په سپینتې باندې وار کوي که وه یې ویشتله او د چك له لوري نه
یې په بوك خر او آس سره واړ وله دا یې هم وګټله . د دې سپینتې له ګټلو
نه وروسته هغه سپینتې د ښی لاس د ګټې (غټې بټې) او منځ ګوتو په زور
او قوت سره ولی چې د خره په ډډه او لوري ولاړه ده ، که دا یې هم په بوك
آس او چك لوري واړ وله نو درې واړه سپینتې یې وګټلې . د دو-
هم ځل له پاره د سپینتیو ګټو ونکی ملګری بیا یوه یوه سپینتې له
جیبو نو نه راواخلی یو تن یې د لاس په واسطه سره پورته هوا ته
اچوي د مځکې په مخ باندې د را لویدو په حال کې یې ګوري چې
دوې بیلوی په چلك لوري ، یوه په خره ډډه او بله په بوك لوري
سره پرته ده دا وار د سپینتیو ګټلو وار د هغه هلك په برخه کیږي

---

(۱) سپینتې دوه مخه لري (چلك ، بوك) بوك له چلك زورور دی ،
دوې ډډې او ښلې لري یوه «خره بله آس» آس په خره زورور دی .

چې سپينتې يې په خره ؤهه ولاړه ده، دچك او بوك نه بيا خره زوره
ورېده دخرې ښښتن ته كه د بوك مخ سپينتې نږدې وي هغه د ښى
لاس د گټې او منځ گوتو په زور سره ولى كه يې د بوك لوري نه په بل
مخ ياچك، خراو آس وارو له گټلې يې ده ، كه وايې نه ړو له نو
دى سوځى او د بېره يودو يشتلو وارد بوك لوري د بيلوى خاوند په
برخه كېږي او پسه دې ډول او وار سره دى
مجبور دى چې اول دخره والا بيلوى وولى اوترې وېې گټى، كه د
خره والا سپينتى په آس ولاړه وي او دى يې وولى په چك يې وار
وي و يې گټله له دې وروسته د دووچكو سپينتيو په ويشتلو او گټلو پيل
كوي، هره يوه چې له بلې نه ور ته نږدې وي او هغه نږدې سپينتې ولى،
كه د چك له لوري نه يې په بل لوري وارو له سپينتې يې و گټله كه يې په
بل لوري وانه ړو له نود سپينتې گټلو وار دچك والا په برخه كېږي
هغه دده او بل ملگري سپينتې په همد غه شان سره گټى ، د سپينتيو د
گټلو لوبه تر هغه وخته پورې دوام پيدا كوي چې د دغو ځلورو
تنو له منځ نه يو تن د دريو حريفانو ټولې سپينتې و گټى او هغه
خالى لاس پاتې شى . كه دوه تنه دا لوبه كوي او دا وړه يوه يوه
بيلوى سره راخلى يو تن يې لاس كې نيسى مخ پور ته يې اچوي په
مځكه چې راو لو بږي كه د يوه هلك په چك لوري او د بل په بوك
لوري و اوبږي نو دلته د بوك والا سپينتې خاوند د بيلوى د گټلو حق
لري ، ځكه بوك په چك زور وردى كه چېرې د يوه بيلوى په خره
ؤهه او د بل په آس ولو بږي نود سپينتې و يشتلو او گټلو حق د آس
والا په برخه دى دا ځكـه آس بيا په خره زورور دى د ا د سپينتيو د لو
بو په قانون پورې اړه لري ، د سپينتيو د گټلو حريفان كله كله د
سپينتيو د چك او بوك لوري ترا شى يا يې په كومه ځيږه

ډېره سره سړي چې ښه ښوی شی او د ګټلو په وخت کی وانه ـ
وړی چې دوی ورته (سېټی) وايی رښتيا هم سېټی په اسانی سره
د نورو سپښتيو په شان نه اوړي.

سر بېره پر دې سپښتې بې له ګټلو نه د ملګرو تر منځ د ساعتېری له پاره
هم سره ويشتل کېږي‌ه د سپښتيو د ويشتلو داحالت داسې دی چې دوه يا
څو تنه سپښتې له کوروټو نه راوړي‌ټولې سره يوځای کوي‌او بيا يې
په وار سره په لپه کې‌اخلی مخ پورته يې اچوی دمځکی په مخ باندې
هر څومره چې د آس اوخره په ډډه ولاړې وي هغه‌ټولوي پاتې يې بل تن په
لپه کې اخلی هغه يې پورته اچوې‌او دمځکې پرمخ باندې هر څومره چې
دخره او آس پډډه ولاړې وي ټولوي يې پاتې، يې بل هلك اخلی
هغه يې پورته اچوي دمځکی پرمخ هر څومره چې دآس اوخره په
ډډه ودريدې هغه ترې ټولوي، په دې ډول سره څو څو واره سپښتې
اچوي څو چې خلاصی شی په پای کې هر يو تن خپلې بيلې شمېري
او بيا يې د ساعتېری له پاره د لوبې دمځکنی قانون په شان يو
له بله په مينه سره ګټی. دټولو سپښتيو پورته يوځای اچولو ته (ګر)
وايی دسپښتيو ګر چې وشی بيا بې دمځکې پرمخ ګوري چې څومره
دخره او آس په ډډه ولاړې دي هر څومره چې ولاړې وي هغه‌ټولوي.

په ننګلو کې په عمومی ډول سره سپښتې په سپښتې داسې ولی:

١ـ بو که په چکه.

٢ ـ آس په خره.

٣ ـ آس په چکه بو که.

٤ ـ خره په چکه بو که.

## پچې ګټل:

د دې لوبې له پاره لو بغاړي په لومړي سر کې په مځکه کې
يوه کوچنی ژغورګی جوړوي کله چې کمکی مايه‌او ژغورګی

جوړه کړي ، له دې وروسته دوه تنه دالوبه داسې هر يو دځان په ګټه سره کوي :

دوزو(بزو)دوه، درې او څلور سوه روغې پچې چې ما تې او کو نډې نه وي راټولوي د لوبې داجرا کولو له پاره د وارنيو له په غرض (شو ت) او (تو ند وچ) سره کوي، د کوم تن چې لومړی وار په نصيب شی راغونډې کړې پچې ټولې په يوه وارسره ژغورګی او ماينې ته ننه ورا چوې، ټولې پچې چې ژغورګی ته ورواچوي، له دې وروسته ټولې يو ځای د شی لاس په واسطه داسې په مهارت سره له ژغورګی نه راوکاږي چې يوه دانه په کې پاتې نه شی. که يوه دانه په کې پاتې شوه داتن سوځی د پچو ګټلو وار بل ته ور رسيږي، دا هم ټولې پچې ژغورګی ته ورغورځوي او له هغې وروسته يې په يوه وار سره له دې ځکه مانې څخه ټولې د مځکې مخ ته راوباسي د مځکې مخ ته چې راوباسی شی، بيا يوه يوه دانه بېرته په ډېر غور سره د شهادت په ګوته چې له بلې پچې سره ونه لګی ور غورځوي ، که چېرې يې د غورځولو په وخت کې پچه له بلې پچې سره ولګېږي نودی سوځی او دده سيال ملګری د پچو په غورځولو داسې بريد کوي چې اول به ټولې پچې راټولوي او ژغورګی ته به يې اچوي له ژغورګی نه به بيا ټولې په يوه وار سره راوباسی که يوه يا څو دانې ترې پاتې شی سوځی، که ټولې يې امانتې راوه ايستلې بيا يوه يوه دانه په ډېر احتياط سره ورغورځوي، که دغورځېدو په وخت کې يوه پچه له بلې پچې سره ولګېږي سوځی او وار يې تېريږي، په دې ډول سره د پچو له به چې زيات فکر، دقت او غورغواړي تر هغه وخته پورې سيال ملګر ي سره کوي څو چې يې زړه غواړي او ستړي شوي نه وي، د پچو ګټلو په وخت کې هر يو

خپلې پچې شمېرې چې څوسره يې ژغورګۍ ته ور اچولې دي هر يوه چې تر بل زيا تې غور ځولي وي هغه په خپل سيال ملګري بر او بريالى دى · ددغې لوبې د اجراء په وخت کې هر لوبغاړى بايد دا دړې شرطه پرځاى کړي که يې پر ځاى نه کړي نو وا ربې تېر يږي:

۱ـ هر لوبغاړى مجبو ر دى چې د لوبې د کـو لـو په وخت کې راغو نډې شوې پچې په يوه وار سره له ژغورګۍ او ما يې نه راوباسى، که چېرې يوه دانه ترې پا تې شي دا نو سوى بلل کېږي او لوبه به بل تن له سره پيل کوي او له کو چنى کنډې نه چې دوى په لاس جوړه کړېده پچې به راوباسى، که له دې تن نه هم يوه يا څو دانې پاتې شوې دى سوى او لوبه به بل کوم کس کوي، ترڅو چې ټولې پچې په يوه وارسره له ژغورګۍ څخه راوه نه ا يستل شي لوبه کولاى نه شي ·

۲ـ کله چې د لوبې د لوبغاړ و نه يو تن ټولې پچې په پوره دقت او مهارت سره راوباسي او په ژغورګۍ کې يوه دانه پاتې نه شي نو دا ور ـ ته ضرورده چې ژغورګۍ ته بېرته د پچو اچولو په وخت کې به يوه يوه دانه د شهادت د ګوتې په واسطه سره په يوه وار او يوه ټپله او ډکه سره وراچوي، يوه پچه دوه وارې د ژغورګۍ لور ته ور ټپله کولاى نه شي ، بلکې په يوه وار سره به يې ورا چوي . که چېرې پچه د ژغورګۍ په ژۍ باندې ودرېږي دغـه لوبغاړى سوځي، که بل لوبغاړى هم په دې ډول وسوځي وار بل ته د بل نه بل ته پسې رسېږي ، د پچود ګټلو په وخت کې په يوه وار ټپله او ډکه سره د پچې وراچول ژغورګۍ ته اساسي شرط دى·

۳ـ که د پڅود اچولو په وخت کې يوه پچه چې ژغورګۍ ته يې اچوي بله پچه يعنى دو همه پچه ورسره و ښوروي پهدې

حال کې د پچو اچو لو او بغاړی سو ځی ، د پچو اچو لو وخت کې باید زیات احتیاط وکړ شي چې بله پچه و نه شو ړیږي دد ې له پاره چې د پچو ګټل زیات فکر، پوهه او مهارت غواړي نو سر بېره پر دې د پچې د ګټلو له داسې هم په بل ډول سره اجرا کېږي:

د پچو د ګټلو لو بغاړي دوه اودرې سوه پچې کوچنۍ کندې (ژغور ګی) ته چې په خپله یې جوړه کړې ده اچوي ، له دې وروسته د هر تن چې د پچو ګټلو وا روي د ژغور ګی نه د مخکې مخ او غولی ته یوه یوه پچه یوازې د ښی لاس د شهادت په ګو ته سره راو باسی ، هر څو سره یې چې راوا یستلې او که د پچو د را ایستلو په منځ کې یوه بېر ته ژ غورګی ته ترې واوښتې نود ا تن سو ځی او خپلې را ایستل شوې پچې ټولوي او ژغور ګی ته یې نورو پچو ته غو ر ځوي او د پچود را ایستلو او ګټلو وار د بل کس چې له ده سره پچې کوي په برخه کېږي دا کس هم د ژغور ګی نه یوه یوه پچه د شهادت په ګو ته سره را و باسی هر څو مره یې چې را وا یستلې د هغو شمیر نیسی، کومه چې راو نه باسی سو ځی د پچو را ایستلو وارد ده نه بل میدان ملګري ته رسېږي په دې ډول سره دا لوبه تر هغې پورې د دوی په منځ کې روانه او کېږی څو چې بې زړو نه غواړي. په اخر کې د وا ړه هغه پچې چې را ایستلې یې دی او شمیر یې سره نیولی معلومه وی که یوه تن په څو څو وار وکی ټولی درې زره را ایستلی وي او بل دوه نیم زره را ایستلي وي نو ددې په زرو وا لا بر او بر یالی ګڼل کېږي او خپل ملګري ته وا یی دا نورې درکې څو ندي وسا ته یعنې دوه نیم زره یې

زماله دوه نیموزروسره مجرااو پنځه سوه راته‌درکې و ساته، په دې پیغور سره یې ملګری ژ یات خو اشینی کیږي .

## * متل ګټل :

په کلیو او بانډو کې دا لو به واړه یاځوان هلکان په‌د وو او څو تنو سره چې هر یو یې د ځان په ګټه او فایده پــه ډېر احتیاط سره کوي دا سې ده :

د ییډ ونو (اختر ونو، عید ونو) ، وادو او د نورو خوښیو په ورځو کې د کلیو الود دود اوروا ج سره سم هر کور جوړمات ته یو شکور دغنمو پخې نینې چې متل په کې ګډ وي راوباسي داد غنمو او متکو ګډ خوا نــی (خونی ، شیر نی ) کلیوال پــه جوماتکې په لو یو او واړو وبا ند ې ویشی، هلکان‌او ژنکی (ژنی ،ځوانان) چې له نینواو متکو نه جیبو نه ډک کړي له جوماتنه بهر ته را وزي، کله چې دجوماتنه و ر شنې سره را شی هلکان دوه دوه یادر ې درې ځای په ځای په‌یوه‌هوا ردر منډه یــا پټی کې سره د ریږ ي او و ا یــی را ځی‌ء متل سر ه و ګټو.

کله یې چې دمتکو په ګټلو اتفا ق او رضا سره حاصله شی ذودا سې یې سر ولی : یو تن‌ددرنده په کونج کې متل دمځکې پر مخ ور ته ا یږ دي بل تن یې د شملو یا پنځلسو ګزو (مترو) له فا صلې نه په‌شی لا س سره چې متل یې په کې نیولی‌دی داایښودل شوی متل ولی ، که متل یې وویشت داویشتل شوي متل اخلی

---

* اوغز، چارمغز ، اکوړ، په منګلو کې دمتکو ونې ډېرې دي د سنبلې په اخراو د میزان په او لو ورځو کې پخیږی،متک چې پاخه شی نو یې ځبو ي یعنې له ونو نه یې را تلو ي ·

هماغه هلك بل ستك ورته ا یږ دي ، كه‌دا یې وویشت بیا بل ور ته ا یږدي كه دا ترې خطا شی اووه یې نه ویشت هغه هلك چې ستك یې ورته ا یښی دی را جگیږي‌دا بل هلك دده ځای‌ته‌ورځی اوستك ورته ا یږدی اودی یې ولی ، كه‌ستك یې وویشت بل ستك ورته ا یږدي كه وه یې نه ویشت په اول وارسره ویسواو ترې خطاشی نو بیر ته ځی او دی ستك په هغه ځاې كی ور ته ا یږ دی او بل هلك یې و لی .

په دې ډول سره دستكو د گټلو لو به چې زیات مهارت اودو- یشتلو قدرت غواړي تر هغې پورې روا نه وي څو چې د یوه تن سره ستك خلاص شی او هغه بل تن یې ترې‌و گټی ، هغه هلك چې ستك یې گټلی په بر یتو لاسو نه او گوتې تیروي ، هغه چې ستك ترې تللی‌دي خپه وي او كوړي وزر تر ې روا نیږ ي .

بی له واده ، اختر او نورو خوشالیو نه دستكو لو به دستكو دځبولو (تلولو) په وخت كې هم ډیره ډیره سره كیږي ، دا ځكه دستكو د تو ئید لو په وخت كې هر هلك ځ نته ډیری ، ډیری ستك ټولوي او ټولی ټولی سره غاړه په غاړه یو ځای كیږ ي او ستك په خپلو منځو كې سره گټی ، كله كله د دوی‌تر منځ په دې گټلو كې جنگ سره پیښیږي ، دا ځكه د هغه ما شوم نه چې ستك ترې بل تن گټلی زړه یې ډیر شین وي بې له كومې خبرې څخه او به خړ وي او جنگ جوړ وي‌په جنگ كې پښی اوسر ونه د تیږو په ویشتلو سره ماتوي علت یې دادی چې ستك دخوراك شی دی نو ډېر زړه یې په بدوي چې څنگه یې ټول را نه و گټل .

په هر صورت دستكو د گټلو په لو به دځوا نانو او هلكا نو جامې (جمعیتو نه ، ډلې ، ټولی) ډیرې سره گرمې او تو دې‌وي .




د نلیو (توکو) گټلو لوبه

١٧٢٩

سر ښوره پردې دا لو به دا سې په مخالفه ښه هم کله کله د هلکانو تر منځ اجرا کيږي، يو هلك چې متك په يوه کو نج کې ور ته کښږدي بل هلك يې د لرې فاصلې نه چې سره معلومه کړې يې ده ولي . که متك يې وو يشت ويشتو نکی هلك يې اخلي او خپل جيب ته يې اچوي که متك يې و نه و يشت او تر خطا شو نو هغه هلك چې متك يې ور ته ايښی دی دده متك اخلي ، خطا شوی او شوی هلك بل وار کوي که خطا شي متك يې اخلي او که وه يې ويشت متك دی اخلي او راځي د بل هلك پرځای کښېني او متك ورته ايږدي او بل هلك يې ولي په دې ډول سره ويښتو نکی هلك متك ولي که وه يې ويشتل دده دي ، که يې و نه ويشتل ايښودونکی ملگری دده وار کړی شوي متك ځانته ټولوي ، کله چې متك وولي هغه دا يښودونکی هلك نه اخلي ، ايښودونکی هلك را پورته کيږي هلته دمتکو په ، ويشتلو پيل کړی که متك ترې خطا شي نو دده وار کړی شوي متك دده سيال او حريف اخلي ، په دغه شان سره دمتکو د گټلو لو به په دې رنگ هم هلکان سره کوي .

## (*) نلوه گټل :

د تشو او پو چو (خالي) نليو ويشتلو او گټلو لو به کټ مټ دمتکو د گټلو لو بې په شان دد وو او خو تنو تر منځ چې هر يو ځانته نلي گټي صورت موسي . دا لو به په کليو او بانډو کې دواده په ورځو کې د هلکانو ترمنځ کيږي او بل وخت هيڅ وجود نه لري، دا ځکه دواده په ورځ پښتانه وروځي ځوانان دوادهد نور دود

(*) ځينې پښتانه ورته تو کې وا يي

د پاسه توپك هم په ډیډو، ډیډو (باړو، باړو) چلوي اوولي يې،
ډ کړ توسو تشې نلۍ په لا ر کې غو ر ځوي او هلکان يې پسې
ټولوي او چیرو نه ترې ډ کوي، کله چې هلکان نلۍ ټولې کړي دوا ده
خوشالي په ځای پر پیږدي. په خپلو لو بو او ډول ډول ساتیر يو پیل کوي
یو نیم وا یې را ځئ نلۍ خو هر یوه ډېر ې ټولې کړې دي اوس
به يې سره وګټو، ټولو ته دا خبره خو ند ور کوي او نلۍ د ا سې
سره ګټي :

دوه، دوه درې، درې، او څلور، څلور ځای پر ځای سره جوړه
کېږي او نلۍ سره ولي یو هلك خپل سلګری ته په یو ځای کې تشه
او خالي نلۍ د منځکې پر منځ لګوي او بل سلګری يې له هغې فاصلې
نه چې سره معلومه کړې يې ده ولي، که ایښودل شوې نلۍ يې
په لاس کې نیول شوې نلۍ با ندې ویشتو نکی هلك وویشتله دا نلۍ يې
وګټله او هغه هلك چې نلۍ يې ور ته ایښې ده ده ته ورکوي او
د هغې پر ځای بله نلۍ ور ته لګوی، که دا يې ترې وو یشتله بیا بله
ورته لګوی ، که دا ځل ترې خطا شوه دا هلك سوځی او هغه بل هلك
چې نلۍ يې په منځکه ایښې ده نود لو بې د قانون سره سم را جګیږی
دا بل هلك چې نلۍ يې ویشتلې ورځی دده په ځای نلۍ ورته لګوی
او دا بل يې ولی که نلۍ يې وویشته ګټلې يې ده، بله نلۍ ورته
لګوی که هغه يې وو یشتله بیا بله ور ته لګوی که ترې خطا شوه،
دا بل هلك دده پر ځای راځی نلۍ ولی او هغه بل يې ور ته لګوی،
په دې ډول سره د نلیو دګټلو لو به تر هغه وخته پو رې دد وی
په منځ کی روانه وی خو چې يو سلګری ټولې نلۍ ترې وګټی او
له بل سلګری سره خلاصې شی .



د پیچ پیچ کولو یا

# دګوتي پټولو لوبه



۱۷۴۹

برسیره پردې دالو به په بل رنګ د ټکو د ګډلو په شان هم کله کله اجرا کېږي :

یو تن چې نلی ورته لکه کړي دا بل یې ولی و یشتو نکی که نلی ونه ویشتله نو د ویشتو نکی نلی سیال ملګری چې نلی یې ورته ایښې ده اخلی ، بل وار په کوی که وه یې نه ویشتله بیا بل وار په ایښودل شوې نلی کوی ، که داخل یې وویشتله ویشتل شوې نلی ګټی او اخلی یې او د بل ملګری ځی ته ځی او دی دې بل ملګری ته نلی ایږدي ، دا بل ملګری د هغه ځای نه راپورته کېږي او دده پرځای نلی ولی که ترې خطا شی نلی یې بل ملګری اخلی .

په دې ډول سره هم د نلیو د ګډلو او ویشتلو لوبه د ددوی ترمنځ رواج او په مېنه سره کېږي. په یوه سندره او لنډۍ کې یې یادونه داسې راغلې ده :

چې جنګ ته ځې مادرسره بوزه* تشې نلی به دې په جېب کې تو لومه

**پېچ پېچ :**

د منګلو کلیو او بانډو کې د پېچ پېچ لوبه د ژمي په اوږدو شپو کې د دوو سیالو او حریفو ډلو ترمنځ اجرا کېږي ، د کلیو او بانډو په هلکانو برسېره دالوبه ځوانان هم د وخت د تېرېدو له پاره په ویجرو کې د شپې له خوا کوي او د کولو بڼه یې داسې ده :

اته یا لس تنه په یوه ویجره کې سره غونډیږي، څلور او پنځه یوه ډله ، پنځه او څلور بله ډله کېږي، کله چې ډلې سره معلومې شی ، هغه ډله چې د (شوت) په واسطه یې لومړی وار ګټلی دی خپل لاس نه ترڅادر یا برکې او پوټو لاندې پټوی، کله چې لاس نه ترڅادر لاندې سره پټ کړي د ملګرو نه د یو تن د یوه لاس په ورغوی

کې غیران که غیران نه‌وی گوت یې (گوتۍ) یا کوسه گردی پلنه تیره پټه‌وي ، کله چې د یو تن دلاس په ورغوی کې یو شی پټ کړی له هغې وروسته لاسونه دځادر او پوتونه راوباسی اوخپلې سیالې ډلې ته وایی ، دادی و یې شیۍ . دمقابلې سیالی ډلی یو تن د نورو په خوښه سره ددوی لاسونه گوري اودلاسونو کتو په وخت کې دکوم تن په لاس باندې یې چې شك راشی هغه تن ته وایي (دالاس پیچ که او ددې بل نه یې راکه ) . که په هغه لاس کې چې وایی راکه! کوم شی چې نیولی یې دی پیدا نه کړي اوخالی لاس ورته خلاص کړي نو نیولی ډله بیاد بل ځل له پاره لاسونه ترځادرلاندې پټوي او تیا کلی شی د یوه تن دلاس په‌ورغوي کې پټا بردي او توا لاسونه راباسی . سیالي ډلې ته‌وا یی وشیۍ ، دسیالی ډلې بیا کوم تن دوی لاسونه چې موتۍ کې یې شی نیولی گوري ، دهریوه تن په موتۍ یې چې اشتباه راشی ورته وایی :

«دا پیچ یعنې داخلاص کړه په‌دې کې نه‌شته ددې بل لاس نه یې راکه» دا تن یو لاس خلاصوي او د بل لاس موتۍ هم خلاصوي گوري چې ددې تن په موتیو کې څه شی نشته اوخالی لاس دی په‌دې ډول سره د شی پټو نکې ډله بیا په‌ورغوي کې دځادر لاندې هغه تیا کلی شی پټوي او دځادر نه لاسونه راو باسی ، شیو نکی ډ لې ته وایی وشیۍ ، هغه یې شیی که دا ځل یې پیدا کړ ، نو شیونکی ډله‌وار ځنې نیسی اودوی دځادر لاندې شی د یوه تن په ورغوي او موتۍ کې پټوي اود ځادر نه لاسونه راو باسی اوسیالې ډلې ته‌وایی وار ستاسو شی اوس یې وشیۍ موږ نیولی دی ، ددې ډ لې یو تن یې لاسونه گوري که شی یې پیدا کړ په اول وار سره سوځی او وار بیر ته هماغې

بلې ډلې ته د نیو لو لپاره ورسیږي یا په برخه کیږي او هغه په سو تې کې تا تلی شي بیا پټوي او لاسو نه د ښادر نه راو باسي او خپلې سیالې ډلې ته وایي وښیيء، سو پټ نیولی دی شپږو نکې ډله یې ښیي، پسه کوم تن چې اشتباه اري هغه ته وایي د الاس پیچ د دې بل نه یې راکه، که درست او صحیح بې ښو دلی وي دا تن خپل سوتې خلاصوي او د سقا بلې ډلې شپږو نکی تن یې د لاس له ور غوې نه هغه شی اخلی ، په دې ډول سره د پیچ پیچ لو بدودوی ترمنځ د سپید وتر چاود۔ یدو او چرگ ترا زام (چرگ بانگ) پورې دوام پیدا کوي ، هر د ډله د خپل وار او د شي د ښو دلو حساب نیسي هرې ډلې چې ډیر ښود۔ لی وي بریالی گڼل کیږي دا لو به ډیر سو چ او فکر غواړي.

## پټ پټو نکی:

د پټ پټو نکی لو بدودو سیالو او حریفو لو ترمنځ په خاص ډول اجرا کیږي، کله چې د دغې لو بې لو بغاړي په دووډلو سره بېل شی د وارد نیو لو له پاره (شوت) او (تو ند و چ) سره اچوي، د هرې ډلې چې لوبړی وار په نصیب شی ، د ا ډله خپلې ستر گې پټو ي او سیا له ډله یې ځانو نه په خو ندي ځا یو کې خو ندي کو ي، له دې وروسته پټ شو ي هلکا ن غږ کوي او وايي «گړی (منگی) مات غو ړي تا ل» یعنې ستر گې خلاصې کړیء . سو ځا نو نه پټ کړ یدی هغه ډله چې ستر گې یې پټې کړ ې دي خپلې ستر گې خلاصوي او په پټو شو یو هلکا نو پسې شاه وخوا او چارچا پیر گر زي او هغه غواړي کوم تن چې پیدا کړي نو هغه ډله چې پټه شوې وه وسوه، ستر گې پټو و نکې ډله به بیا ستر گې

پټوی او بله ډله به بیا ځانونه په پټو اوخوندی ځایو کې پټوي.
د پټوونکې ډلې یو تن بیا په لوړ آواز سره غږ کوی او وایی:
«گړی سات غوړی تال» ددې غږ په اوریدو سره سترگې پټوونکې
ډله سترگې خلاصوی او په پټو شو یو هلکانو پسې گرزی که یو
تن یې پیدا کړ دا ډله وسوه او بیا به پټیږی او بله ډله بهدد ریم
ځل لپاره سترگې پټوی، پټوونکی چې ځانونه پټ کړی بیا غږ کوی
«گړی سات غوړی تال یاتوی» ، سترگی پټوونکی سترگې خلاصوی او
پټو شو یو کسانو پسې گرزی که هیڅ یو تن پیدا نه کړی نو سترگی پټوونکی
ډلې مشر غږ کوی اووایی موږ پید انه کړی ءموږ نورو سوورا ځیء
تا سې سترگې پټې کړیء او موږ به ځانونه پټ کړو ، که پیدا
مو کړو بیا به تاسې بریالی شیء که پیدا مو نه کړو بیا به د سترگو
پټولو وار زموږ شی ، په دې ډول سره دا کلیوالی او محلی لوبه
چې هلکان زیاته سینه ورسره لری تر هغه وخته پورې روا نهوی
خو چې ددوی خوښه او رضأ وی . په دې لوبه کې یوه کلمه ډېر
غوراوارزښت ورده هغه داچې د سیا لوډلو ترمنځ په کې صدق ،صفا
او رښتیا والی بیخی وجودلری داځکه هغه ډله چې سترگی پټو ي
کیداى شی سترگی نیم کښې و نیسي اودمقابلې ډلې کوم تن وگو-
ری او بیا یې پیدا کړی .
خو دا کار دوی د باور او اعتماد له مخې نه کوی نوځکه په
دوی کې ر ښتیا اوصدق ډېر دی .

د پیچو لوري



د بزو لوري

۱۷۸

د ختکي لوبه

## ختکی :

د ختکی لوبه کټ مټ د شطرنج د لوبې په شان ده مګر د شطرنج لوبه عصري او په موږ رنبوول اجرا کېږی خود ختکی لوبه ابتدا یی، ساده او محلی بڼه لري چې کلیوال او بانډوال یې داسې سره په خپلو منځو کې پهدوو تنو کوي :

په یوه هوارغولی کې د مخکې پرمخ باندې د یوه تېره سري لرګی په واسط یا په یوه تخه باندې د سکارو په واسطه مربع ډوله شکلو باسی او مربع له کونجو نو نه یو او بل لورته د وه خطو نه تېروي، د مربع د خلورو مخامخ خطو له منځ نه یو او بل ته د وه مستقیم خطو نه سره تیر یږي، د اشان بیاد کونجو نو د یوې نږدې څنډې نه یو او بل ته مستقیم خطو نه سره تېر یږي. د څلورو خطو له څنډو نه بیا یو او بل لوري ته مستقیم او سیخ خطو نه تېر یږي، د خطو د تقاطع په نقطو او ټکو باندې هغه دوه لو بغاړی چې د ختکې لو به پرمخ بیا یی یو تن ګردۍ تیږې او بل تن د وزو (بزو) ګردۍ پچې د پاسه پهدې ټکیو ا یږدي او لو به داسی پر مخ بیا یی :

کله چې یو تن یوې خوا ته تیږي د خطو نو د تقاطع په نقطه باندې کېږدي، بل لوري ته یې بل نفر پچې پهخالی نقطو باندې ا یږدي. د دواړو خو او په منځ کې د ختکی د منځ لو یه نقطه خالی او تشه پر یږدي، داددې له پاره چې یو تن که د پچې والاوي او که د تیږې

والاوي خپله ټیره یا پچه بهداول وارد پاره شوروي پهدې خالي ځای یا نقطه بهیې ایږدي ، پهدې ډول سره دختکی لوبه شروع کیږي او دوا ړه حریفان ملګري د لوبې دقانون سره سم د یوا وبل پچې او ټیږې سره وهي او لهمنیدن نه یې وباسی .

د لوبې پای یادختکی دجنګ په صورت کې د یوه تن یا د پچې والا یا دې ټیږو والا ټیږې خلاصیږي که د پچې والا پچې پاتې شوې، د لوبې د قانون په صورت کې د هرچا چېدانې (پچې یا ټیږي) پاتې شي هغه بریالی ګڼل کیږي. ددې لوبې کول ډیر زیات فکر اوسوچ غواړي نوځکه یې په کولو سره ذهن او فکر قوي کیږي .

## ستر ګی تړل :

په کلیو او بانډو کې د ستر ګو تړلو او بهد خو تنو ترمنځ په ګډه او مشترك ډول سره داسې ترسره کیږي :

د لوبې لو بغاړي د یوه تن ستر ګې په دسمال سره پټوي باتړي نور هلکان یې یوې او بلې خواته سره تېت کوي ، دا هلك چې ستر ګې یې تړلې اوځه نهويني په دغو هلکانو پسې یوې او بلې خواته لاسونه اچوي او کوښښ کوي چې یو تن ونیسی ، کوم هلك چې دی ونیسی بې لهدرنګه نهخپلې ستر ګې خلاصوي اودا بل هلك ستر ګې تړي. دادوهم هلك هم نور لو بغاړي یوې او بلې خواته تېتوي دی په هغو پسې لاس اچوي او کوښښ کوي چې په پټوستر ګو سره یو تن ونیسی او لهدې کړ او او مشکل نهځان خلاص کړي . په دې



د سترگو تړلو لوبه

۱۸۹

۱۸۰۵



دتیزي اچولو لوبه

ډول سره دستګو تړلو لوبه د ملګرو ترمنځ تر هغه وخته پورې په خوښۍ او خوشالۍ سره روانه وي څو چې يې ښه ځانونه ستړي کړ نه وي او زړونه يې غواړي. دا لوبه په عمومي ډول سره وړې او کوچنۍ جلکۍ سره کوي، هلکان دومره مينه نه ورسره لري ・

## تيږه اچول :

په کليو او بانډو کې د تيږې اچولو لوبه د کليو او بانډو دنورو لوبو په خلاف د زور آزموينې ډېره غوره او په زړه پورې لوبه ګڼل کېږي ، دا لوبه د کليو او بانډو د ځوانانو له خوا داسې ترسره کېږي :

په يوه هواره ځای کې ځوانان سره غونډ يږي نيم من يا يو او يو نيم من تيږه را اخلي د يوه ټاکلي ځای نه يې د لاس د متو په قوت چې ور غوي کې يې نيولې وي د مخ لوري ته اچوي ، د تيږې اچولو په لوبه کې د لوبغاړ يو قوت او زور سره معلومېږي هر څوك چې ډېر غښتلي او زور ور وي هغه يې له ټولو نه زياته مخ ته اچوي، څوك چې په قوت کې سره برابر وي يو شان تيږه سره غورځوي ، څوك چې کمزوري وي د زورورو نه يې ترشاه او بېرته غورځوي ، په دغه لوبه د ټولو لوبغاړ يو زور او قوت په درجه او ترتيب سره معلومېږي ・

## غوټو کې و يشتل:

دغوټو کېو دو يشتلو لوبه دواورې دوريدو په وخته يعنې ژمي کې دځوانو همځولو ترمنځ داسې صورت سره مومي :

ځوانان واوره د مځکې له مخ نه را اخلي په خپلو دواړو لاسو سره يې ښه ټينګوي «کلکوي، سختوي» له ټينګولو نه وروسته چې د يوه کوچني کلك غونډاري شکل پيدا کړي، بيا په

دغو غونډو ار یو او ګرد یوغو ته کېږدو او بل سره ولي، دا لوبه
ډېره خطرناکه ده، کله کله د هلکانو ترمنځ چې یو او بل سره ولي
داسې پېښېږي چې یو نیم تن سترګې ته پرې ولګېږي او سترګه
یې ړنده شي یا د سر ټټکو او شقیقو ته ولګېږي او سمد لاسه
مړ شي، په دې ړوندوالي او مړینه سره خبره د لویانو
ترمنځ د ښمنۍ او بدۍ ته رسېږي. له دې کبله له دغې لوبې
نه ځوانان ځانونه ژغوري او تر وسه وسه پورې یې نه سره
کوي، واړه ماشومان چې په لاسو کې یې دومره متره نه وي
دا لوبه د خوشالۍ له پاره په واړو کې اجرا کوي.

## سر (۱) باندې ښوئېدل :

که څه هم دا لوبه په کلیو او بانډو کې دومره معمول
او رواج نه ده، خو سره له دې هم د منګلو لوړ غرونه چې
په ژمي کې له سپینو واورو نه ډک شي، د پسرلي په رارسېدو
سره د لمر د تاو له امله سپېره واوره ورو ورو اوبه کېږي
د مازدیګر (مازیګر) او شپې له خوا چې لمر نه وي او سوړ
باد پرې ولګېږي ورو ورو د واورې مخ کلک او سپېره توب
یې په ګور ګور واوره یا په بله ژبه په ځېږه واوره تره اوړي
د سهار له خوا چې تر نیمې ورځې پورې د دغې واورې په سر (مخ) باندې
څوك ګرزي او ځي نه یې ډوبوي یعنې واوره یې کدم مخ

(۱) سر، د واورې کلکوالي او سرج ته وایي، واوره چې
دا مې کلکه او ځیږه شي چې پښه نه لوه وي نو وایي سر شوې ده
البته د سر واوره تر دولسو بجو پورې کدم نه لوه وي یا نه ډو-
بوي له نیمې ورځې نه یې وروسته لوه وي، خو هغه ډېر کم.

ښکته نه لوه وي ، کله چې وا وره ښه کلکه او سر (سرج) شي نو د کلي لوی لو ی ژني او ځوانان د خپلو کورو نو نه په پټه سره چاری په اوږو کوي او د يوه غره لوري ته چې له وا ورې ښوی او چکې وي د هغه جګ کنډو او لوړې څوکې ته ور خیژي او د چاری د پاسه کښېني، لا ستې يې په لا سو سره ئیسي او په ډېره زیاته تېزۍ سره دوا ورې پر مخ باندې چې سر شوې ده مخ ښکته را ښوييږي په يوه درنګ د غره له څوکې نه و يخ (تال) ته را رسیږي .

دو اورې په سر (سرج) باندې د را ښو ئیدو لو به ډېره زیاته خطرناکه ده دا ځکه هغه چارۍ چې ځوان پرې ناست دی او د سختې شوې وا ورې په مخ باندې چې د یخ او ګنګل بڼه لري که نا بېره په دې تېزۍ سره د یو کړانګ، (کړ نګ ، ژور) لوري ته برابر شي نو دا ځوان کړانګ ته له لو يدو سره په سرا وککرۍ باندې لګیږي، سر يې د لو يدو سره ما تیږي ، که په دې تیزۍ کې کومه ونه یا لو یه تیږه په مخ ورشي ځان ورخخه څپولی او بچولی نه شي نو ور سره لګیږي (تصادم او ټکر کو ي) دلته هم دا امکان شته چې لاس، پښې یا دوجود نو ر غړي يې زخمي اوماتشي، ډیر ځله له دې تپ او پیاو ور نه یا مړه شوی او یا په ډېره سختۍ سره ګوډ ما ت روغ شو ي دي .

له دې کبله د غې سختې لو بې ته د کلي او باندې ځوا نان خپل مشران نه پرېږدي چې دو اورې په سر (سرج) باندې د ښو ئیدو لو به تـرسـره کړ ي . دا لو به په نورو هیوادو کې په عصري ډول هم اجرا ء کیږ ي چې ښه مثال يې (سکي) دی .

**مېتر :**

په کلیواو بانډو کې دا لوبه هغه ماشومان چې د نهو، اسواو دوولسو کالو عمرو اري که هلکان وي که جلکۍ په دوو دوو ټنو دا سې ترسره کوي:

ددې لوبې دوه ټنه لوبغاړي چې د یواو بل حریفان دي د لوبې په پیل اوسر کې پنځه دانې ګردې تیږې د چلمد څرخانې (سرخانې) د سرد ګوتې (غوټۍ) په څېر راټولوي، لـه دې وروسته دواړه لوبغاړي دوارد نیولوله پاره یا (شوت) سره وهي یا (تو ندوچ) سرا چوي په دې ډول سره کوم یو چې لـوبړی وارو نیسي هغه دلوبې په میدان کې یاد کـوټې په غولي کـې دا پنځه کـوچنۍ ګردې تیږې پنځه واړه یوځای په ښي لاس کې اخلي مخ پورته یې هوا ته اچوي د مځکې پرمخ چې راولویږي، یوه دانه په لاس کې ترې اخلي مخ پورته یې اچوي او د مځکې نه هم یوه دانه تیږه را پورته کوي اودواړې په هوا کې سره نیسي، کـه ترې ولویږي سوځی او بل تن په لوبه شروع کوي دې هم پنځه واړه تیږې اخلي مخ پورته یې اچو په مځکه کې چې را ولویږي د مځکې له مخ نه یوه پورته کوي او مخ پورته هوا ته یې اچوي او له مځکې نه بله را پورته کوي دواړې په یو ځای هوا کې نیسي که ترې ونه لویږې بیا یوه تیږه مخ پورته اچوي او د مځکې له مخ نه دوه همه تیږه را اخلي په هوا کې دواړې نیسي. له دې وروسته په دې ډول سره دریمه او څلورمه تیږه هم له مځکې نه را اخلي او ددې عمل په اجرا سره چې یوه یوه تیږه یې د پنځمې سره په بریا لیتوب پورته کـړې

«یو کنډه» ورته وایی یعنې هره یوه تېره چې ګوښې ګو ښې پورته شوې ده یو کنډه یې بولی.

د یو کنډه یعنې یوې یوې تېرې له پورته کولو نه وروسته بیا پنځه واره غوټې او ګرده تېرې پورته هواته غورځوي، د مخکې پرمخ چې راولوېږي یوه دا نه مخ پورته هواته اچوي اوله مخکې نه دوې دانې غبرګی په لاس کې راپورته کوي اوپه هوا کې اچول شوې دانه ورسره نیسي کهځینې ولو یده وار یې تیراو سوځی، بل هلك لوبه له سرنه پیل کوي که ترېونه لویدې ددوهم ځل له پاره دوې نورې تېرې یو ځای بیا له مخکې نه راخلی او په هوا کې اچول شوې تېرې سره یې یو ځای نیسی، ددې عمل کولو او سرته رسیدوته (دوه کنډه) وایی دا لوبغاړی چې «یو کنډه» او «دوه کنډه» په بریالی بڼه سره وکړي د (درې-کنډه) په کولو پیل کوي پنځه واره ګاټې (غوټې) پورته هواته غورځوي د مخکې پرمخ چې راولوېږي یوه دانه بیامخ پورته هواته شړي اود مخکې له مخ نه درې دانې په لاس کې یو ځای راخلې او هوا کې تېرې سره یې نیسی، داد رې تېرې ایږدې او بیا یوه مخ پورته غورځوي او پاتې یوه دانه له مخکې نه را اخلی اود هوا له غوټی سره یې یو ځای په لاس کې نیسي داعمل چې په بریسره ترسره کړي نو (درې کنډه) یې وکړ.

د دې ترور وروسته لوبې د قانون سره سم چې (درې کنډه) وکړي په (څلور-کنډه) پیل کوي پنځه واره ګردې تېرې هواته اچوي، د مخکې پرمخ چې راولوېږي یوه دانه ترې اخلی پورته یې شړي او

نورې څلور دانې چې ټيټ سره پرتې دي په يوه وار راټو-
لوي او د پورته شړل شوې ټېرې سره يې د رالويدو په وخت کې
هوا کې نيسي که کومه دانه ترې ولويده لوبه يې وسوه او بل
تن به لوبه له سر نه پيل کوي، که دې لوبغاړي تر (څلور کټه) پورې لوبه
په بريالي بڼه سره وکړه، نو د سټرو بلله لوبه چې (ډولۍ) ورته
وايي داسې ترسره کوي :

ډولۍ دې ته وايي چې د کيڼ لاس ګاټه (غټه) او د شهادت ګوتې د
مځکې پر مخ باندې ايږدي او د مځکې له مخ نه د واړې ګوتې مخ پورته
جګې نيسي څو چې له دې فاصلې او سوروي نه د ټېرې ګاټې چې سټر ورته
وايي هغې خواته تېر شي. کله چې ډولۍ جوړه کړي پنځه واړه
ټېرې د ښي لاس په واسطه چې د کيڼ لاس له څنګلې بې هغې خواته
تېروي د ډولۍ مخې ته يې غورځوي. کله چې پنځه دانې ټېرې د ډولۍ
مخ ته وغورځوي ښي لاس د کيڼ لاس د ليچې او څنګلې نه راوباسي
د ډولۍ د مخ نه يوه يوه ټېره د مځکې پر مخ او د ډولۍ د فاصلې نه د
څټ خواته وباسي که پنځه واړه ټېرې يې په موفقيت سره له ډولۍ
وه ايستلې نو د ډولۍ لوبه يې ترسره کړه او د سټرو په بلله لوبه چې
تر ټولو سخته ده او (ګوټ منځونکی) يې بولي داسې اجرا کوي:

لوبغاړی پنځه واړه ټېرې ټولوي پورته هوا ته يې اچوي د
رالويدو په وخت کې د ښي لاس څټ ورته نيسي کومې ټېرې چې د
لاس په څټ راولويږې او پرې تکيه شي، دې د غوڅ دوو يا درېو تکيه شوېو
ټېرو نه نورې غورځوي يوه ټېره د لاس د منځ او شهادت ګوتو تر منځ
کوټ کې نيسي، کله چې يو ګاټې (غوټې) د منځ او شهادت ګوتو په منځ
کې ونيول شي له دې وروسته په پاتو څلورو ټېرو باندې چې د مځکې




دچغې (چیندرو) لوبه

پرمخ پرتې دي دښې لاس دګوتو په سرو سره یوه یوه دانه رااخلي او په هوا کې یې دلاس په تاوولو سره اچوي او په ورغوي کې یې نیسي که ترې خطا شي او مځکې پرمخ ولویږي نو سوی دی اووار یې تېر دی، بل لوبغاړی به بیا لوبه دسره کوي خو چې ګوت منځو نکی ته راورسیږي که ګوت منځو نکی نه مځکې تیږې ترې ونه لویدې او پنځه واړه لوبې یې په بریا لیتوب سره وکړې نود (ګوت منځو نکی) برخه چې دمیټرو دلوبې وروستۍ برخه ده اودا لوبه پرې بشپړ یږي او په خپل حریف لوبغاړی کې یو (غر) کوي. دا په دې معنا دلوبې لوبغاړی چې «یو کنډه». «دوه کنډه»، «دري کنډه»، «څلور کنډه» «ډولي» او «ګوت منځو نکی» وکړي نو په دې عمل سره یې په خپل سیال سلګري کې یو (غر) وکړ په دې ډول سره دمیټرو لوبه دلوبغاړو ترمنځ ترهغې پورې دوام موسی خو چې یې زړونه غواړي هر لوبغاړی خپل غرونه شمېري که د هر یوه زیات شول هغه په سیال سلګري بریالی دی او خپل سلګری تهوایی زماغرونه درکې وساته چې خوادې پرې یخه شي په دې پیغور سره یې سلګری ډېر خپه کیږي.

## چغی:

دچغی لوبه په کلیو او بانډوکې د نورو لوبو په شان ددوو ډلو او دوو تنو ترمنځ اجرا کیږي اود ترسره کېدو بڼه یې داسې ده:

کله چې ددغې لوبې داجرا له پاره د میرانو په غوښتنه سیالې ډلې سره جوړې او جوړه شي د (شوت او تو ندوچ) په واسطه سره چې د دووسیالو ډلو او یاد ووتنو ترمنځ وار معلوم شي هغه ډله چې د چغی لوبه پرمخ بیایي ددغې لوبې دکولو له پاره په اول کې دکوم

مات شوي کلالی لوښی کودی (کودړی) را اخلي او له هغه نه د فلزي پنځو افغانیو په شان ګرد ی چتی جوړوي، هغه ته له چې لومړی واریې دی یو لو بغاړی دغه ګرد ی کودی (چغی) په لاس کې اخلي په بام یا یوه لوي میدان کی لوی او وړ د شکل چې د مستطیل د شکل په څېر وي وباسی، دا لوی مستطیل په ترتیب سره په او وبرخو : لومړی پټی، دوهم پټی، دریم پټی، چغی (چې دا له تولو پټیو نه نری ده او یوازې د پښې پل په کې ځا یږي)، سایلی (په دې کې لو بغاړي دمه او سیا له کوي)، منځ پټی او سر پټی سره وېشل کېږي، په دې اوو پټیو کې د چغی لو به داسې په خوښی سره ترسره کېږي :

د کودي (کودړي) چټی د ښی لاس په واسطه دتا کلي ځا ی نه لومړي پټی ته اچوي او بغاړی کینه پښه دتکی (زنګا نه سترګه) له سرسره قات کوي او پورته یې ګوډه نیسی په ښی پښه لومړي پټی ته توپ اچوي او د ښی پښې د سر په غټه (بټه) ګوته سره په یوه وار دخاورو کودی له پټی نه وباسی، که په یوځل یې و نه باسی سوځی او واریې تېر یږي، ددغې ډلې بل لو بغاړی په لو به پیل کوي، هغه هم کینه پښه دتکی له سرسره قات کوي او په ښی پښه لومړي پټی ته توپ اچوي او چټی د ګوتې په سرسره وهی چې له پټی یې وباسی، که له پټی یې وه ایستله بیا چټی دخط نه بهر یا (له اول پټی نه بهر) دوهم پټی ته اچوي او دا اول پټی په شان یې د ښی ګوتې په سرسره لومړي پټی ته او له لومړي پټی نه یې بهر ته وباسی، تردې وروسته بیاد بهر یا نه چغی دریم پټی ته اچوي، دی په یوه پښه (ښی پښه) توپ ور ته را اچوي، د پښې په سر یې دوهم پټی ته او له دوهم پټی نه بهر ته وباسی، ددریم پټی له کو لو

# د ډې لوبه







۱۸۸۹

وروسته ، کودړی چغې ته اچوي که له چغې نه يې دریم، دوهم او اوموړي پټی ته اوله لومړی پټی نه د باندې په هر یا لی بنه ویوست بیا کودړی په ترتیب سره سیالی ، منځ پټی او سر پټی ته په دې ډول سره اچوي او د یوې پښې په سر یې و باسی که ټول پټی یې په دې ډول سره خپل کړل بیا د سر پټی نه د باندې دا چټی د ښې پښې په خپړ او مخ باندې ایږدي د سر پټي نه سا یلی ته په خپله ټوپ اچوي او چټی د پښې په قوت مخ ته شړي اوله لومړي پټی نه یې اړوي ، په دې ډول سره لومړی پټی گټی او لو به بیا اله سر نه په پورته ډول سره پیل کیږی . دا لو به د دووډلو د لـو بغاړ یو یا دوو لو بغاړیو ترمنځ تر هغه وخته پورې په خپل منځ کې سره کیږی څو چې زړه یې غواړي . د چغی بریالی ډله د پټیو په خپلو-
لو سره معلومیږي ، هرې ډلې چې د بلې سیالې ډلې نه زیات پټی خپل کړل هغه بریالی گڼل کیږي .

## ډبه (اډیه) :

په کلیو او بانډو کې دا لو به د نورو محلی او کلیوالی لو بو په شان دد ووسیالو ډلو یا دووتنو ترمنځ داسې تر سره کیږي :

دا دوې سیالې ډلې یا دوه تنه چې په خپل منځ کی وار سره معلوم کړي د وار د معلومولو نه وروسته هغه ډله یا تن چې لو به کوي د یو یا یوه نیم متر په اندازه اوږ د لرگی را اخلی په ښی لاس کی یې نیسی ، یو بل کوچنی لرگی د یوې نیمې یا یوې لویشتې په اندازه را اخلی . له دې وروسته دوې تیږې څنگ په څنگ سره ایږدي خو په منځ کې یې یو څپك فاصله وجود لري . که دوې تیږې نه وي د یوه څپك په اندازه په مځکه کې ورړه او کوچنی کنده جوړ وي او د یوې نیمې لویشتې په اندازه لرگی د تیږو یا

کنډې د پاسه ا بېږدي . دلو بې لو بغاړي‌د يو او يو نيم‌متر په‌اندازه
لرګی سره دا کمکی لرګی داسې وهی چې په ښی لاس کې يې‌ورته
نيولی وي،د لوی لرګی يو سر د يوې نيمې لو ښتې له لرګی نه‌لاندې‌کوي
او‌سخ پورته يې پرې‌غورځوي او‌په هوا کې‌يې پرې په زور سره
وهی او يوې لرې خوا ته يې غورځوي که ترې
ختا شی نو سوځی، بل نفر په لو به پيل کوي د و هم
لو بغاړی چې د لوی لرګی په واسطه سره کوچنی لرګی سخ -
پورته وغورځوي او بيا يې په‌هوا کې ووهی او ترې ختا نه شی
نو د سيالي ډلې يو لو بغاړی د هغې لرې فاصلې نه چې کوچنی
لرګی په کې پروت دی له مځکې را اخلی دد وو تېړوا و وړې
کنډې خوا ته يې راشړي او‌بېرته يې لو بغاړی‌وهی که‌دژغور-
ګی‌اودووتېړو ترځنګ په دومره فاصله کې ولويږي چې لوی
لرګی دژغورګی‌اوتېړ ونه ور کېږدي اوور سره ولګېږي نودا
تن سوځی بل‌لو بغاړی به لو به په‌سخ بيا يی ، که‌فاصله يې لرې وه
اولوی لرګی‌ورسره ونه لګېد ، بيادا لو بغاړی‌سوی نه‌دی دلوبې
حق لري اودا کوچنی لرګی په‌لوی لرګی سره په‌سر باندې وهی‌او
سخ پورته‌يې غورځوی اودلوی لرګی په‌سر يې په قوت‌اوزور سره
وهی په‌يوه لرې فاصله کې‌لويږي ، لو بغاړی بيا پسې ورځی په
سرباندې يې‌وهی سخ پورته يې غورځی او‌په هوا کې يې‌وهی
يوې لرې فاصلی ته يې شړي ، دريم ځل ته بيالو بغاړی پسې
ورځی‌دلوی لرګی په سر يې‌د پاسه‌وهی پورته‌چې‌وغورځی‌دلوی لرګی
په‌سر يې په‌هوا کې‌وهی او په‌يوه‌لرې فاصله کې‌لو يږي ،دهغې لو يې
فاصلې نه‌يې ترڅوو تېړو او کوچنی کنډې پورې را سېچ
کوي ، دا فاصله که سل لرګيه او که دوه سوه لرګيه شوه‌شمير

یې نیسی ، په‌دې ډول سره دالوبه د بري او ماتو لو په بڼو سره لوبغاړي تر هغه وخته پورې په خپلو منځو کی سره کوي څوچې ستړي شوي نه‌وي اوزړو نه یې غواړي ، هره ډله یاتن خپل شمیر له ځان سره نیسی د لوبې په‌اخر کې یې سره ګوري چې دچا شمېر ډېر دی.

د هرې ډلې یاتن شمېر چې زیات وي هغه بریالی ګڼل کیږي ، دا لوبه له بلې خوا ډېر په‌زړه پورې سپورت او ورزش دی چې وجود ډېر ور سره غښتلی کېږي، دا ځکه په کولو سره یې دوجود غړي په حرکت راځی .

**یادونه :** د دغې لوبې لوی او کوچنی لرګی ته ډی‌وا یی ځکه یې لوبه هم په همدې نامه سره یادېږي ، دډې‌د کولو په وخت کې چې وهی یې داخبرې یا کلمې هم لوبغاړی کوي:

یو لکلک : یو وارې وهل .

دوه لکلک: دوه‌وارې وهل.

درې لکلک: درې وارې‌وهل.

یعنې په لو یه‌ډی سره کوچنی ډی‌درې وارې‌وهل کېږي ، که څلور وارې ووهل شی هغه‌تن سوځی ، لوبغاړی د څلورو وارو وهلوحق نه‌لري.

پردې برسیره لوبغا ړي داسې هم وایی:

اي کړي کړ کېش

دوه کړي کړ کېش

درې کړي کړ کېش

اچمې‌غی چم چمې غی ، دا کلمې‌لو بغاري د لو بې په‌وخت کې په خاص غږسره وایی .

## غېږ نیول :

غېږې نیولو ته پهلواني هم وايي. دازموږ دهېواد ډېره ځنګه نه مستي اولوبه ده دې لرغونې لوبې ته زموږ دښکلي، تاریخي هېواد په خټېزو، جنوبي اولویدیزوسیمو کې غېږنیول یاغېږ ایستل اوپه غېږ ورتلل وايي په شمالي اومرکزي ځینو سیمو کې ورته پهلواني وايي.

د غېږې نیو اولوبه زموږ د هېواد د نورو لرغونو محلي لوبو په شان د زور او قوت دمعلو مو لو ډېره په زړه پورې لوبه ګڼل کېږي چې د نیو لو لارې اوچالونه یې د سیمو په لحاظ بېل بېل رنګونه لري.

لکه څنګه چې د نورو لوبود منځ ته را تلو سمه نېټه نه شو ټاکلی، دار نګه ددې مشهو رې لوبې اصل وخت او تـار یخ چې کله و نه شو معلو مو لی، مګر دا ټکی دیا دو نې وړ دی کله چې لو مړ ي انسا نان دغارو او ځنګلونو کې اوسېدل او دتېر ولو ژوند یې تیراوه، دنورو اجتماعي ګړو وړو تر څنګ یې کله کله دخو شالۍ او خــو ښۍ له پاره په بېلو بېلو لو بو سره خپل وخت خو شاله تیراوه کېدای شي په اټکلي ډول سره وو ایو چې د غېږې نیو لو لو به به له همدې وخت نه په ساده او ابتدا یي بڼه پیل شوې وي . . .

په هرصورت دغېږې نیو لو لو به په یوه هوا رمیدان کې د کلیو او بانډو دځوانانو ترمنځ د زور آزمو ینې له پاره هره ورځ ترسره کېږي ، ددې لوبې دلیدو او ننداري له پاره چې دوه دوه تنه په غېږ سره ورځي ډېر ننداره چیان تو لېږي، دغېږې دنیو لو په میدان کې دخلکو تر منځ ډېر زوږ او غور پش وجو د لري، یـو وايي

پلانکي زور ور دی دادی پلانکی یې نسکور کی، بل وایی دا زما ملګری ډېر لوی پهلوان دی په یوه ډنګ کې به خپل ملګری په مځکه ووهي، له دې امله ویلای شو چې دغېږې نیولو میدان دسیل او ننداري په زړه پورې ځای دی چې ګلیوال په کې ټولیږي، ګله ګله د ګلیوالو تر منځ ددې لوبې د ترسره کېدو په وخت کې جنګونه سره جوړیږي. دیوې پلرینې یا کور خپل خپلوان چې دغېږې نیولو میدان ته راغلي که ددوی زوی یاو- رور په غېږه کې دخپل حریف له لوري را غملی او دهغه خپلوان په خندا ووایي را نسکور دې کی، خوار کی زور نه لري لکه چې ډوډۍ او مړۍ یې نه ده ورکړې. دراغملول شوي هلك په خپلو- انو دا خبره او پېغور بد لګیږي او ځانته یې لوی توسب (سخته کنځل) ګڼي په دې ډول سره ددوی ترمنځ جنګ پېښیږي او ژوبله سره کوي.

په منګلو کې غېږ نیول په دا وروسته دریو ډولو نو ترسره کیږي:

## الف - وچه غېږ نیول:

دغېږې دا شکل داسې دی چې غېږ نیو و نکی یو بل ته کلکې غېږې سره ورکوي او له کوم چال څخه دراغملو لود پاره کار نه اخلي، له ملو (ملاوو) څخه لاس نه سره تاووي، ټټر په ټټر سره ورځي په وچ زور یو او بل یوې خوا او بلې خوا ته سره ښوروي او منجوي، په دغه وچ زور کې نا بېره کمزوری تن ستړی کیږي او زور ور تن یې په مځکه را غملوي او په خندا ورته وایي: (وچ مې په مځکه وویشتې، کوم چال مې نه دی درسره کړی خپه کیږه مه دځوانانو تر سینه لاندې یې) په دې خبره وا نسکور شوی هلك ډېر خپه کیږي، خو له شرمه څه نه وایي.

## ب ـ لنگتي اچول :

کله چې دوه تنه په غېږ سره ورشي ، د يواوبل له ملاوو څخه ليچې سره تاو کړي نو يو کو ښښ کوي چې خپل ملگری په کوم چل نسکور کړي بل کوښښ کوي چې دا بل په کوم چل سره را خملوي ، دغېږي نيولو په دې حالت کې له ډول ډول چالو نو نه کار سره اخلي . په اخر کې يواوبل ته د پښو لنگتي سره اچوي لکه چې د لنگتي له کلمې نه جوتيږي يواوبل ته د را خملولو د پاره وچ لنگی (پاړکی) سره تاگت کوي يعنې وچ لنگی د يوبل پښې ته اچوي او هغې خوا ته يې په تېر سره ور تېله کوي او سخت يې په مځکه غورځوي ، دغېږي په نيولو کې دا ډول خملول ډېر سخت دي ، کله کله د يو نيم تن سر ، لاس او پښې سره ماتيږي .

## ج ـ ملانيول :

څه وخت چې دوه تنه په غېږ سره ورشي ، دوی غواړي يواوبل را خملوي نو کلکې غېږې سره ور کوي . له ملاوونه سره نيسي ، يا په دې حالت کې د پرتاوه (پر توگ) له باگو (پرتوغاښ) يا له ملا نه وهل شوي پټکی او څادر کې لاس نه سره ننه باسي يواوبل تاووي ، په دې تاوو لو کې زورور تن نا پېره کمزوري په ملا کې مخ نيغ پور ته کوي او په مځکه يې ولي اورا خملوي يې ، دغېږي نيولو دا ډول را خملول ډېر خطر ناک کار دی او دا د امکان نه لرې نه ده چې د يوه تن لاس او پښې په کې مات او غوڅ شي .

## د ـ کشول :

په کليو او بانډو کې د پېري کشکولو لو به هم ځانانو او هم واړه سره کوي دوی د لو بې لپاره شپږ گزی (شپږ متره) او ښين يا مزرين پړی را

اخلي. اته یالس تنه سره تو لېږي څلور او پنځه یوې خوا ته څلور او پنځه بلې خوا ته کېږي په یوه هوار پټي یا میدان کې یو لوی مستقیم خط (د میدان او پټي په منځ کې) تېروي، پرې له یو او بل سره نه سره نیسي، هر څو له کوښښ کوي چې د پټي سر ته لاړ شي او په زور سره دا بله ډله ور پسې کشکړي او له خط نه یې خپل لوري ته راتېل وهي، د خط نه یې چې د ځان خوا ته راواړوي دا ډله بریالۍ او زوره وره ده، د پړي کشکولو لوبه د دوو ډلو ترمنځ د زور آزمو-ینې په زړه پورې لوبه ده. په دې لوبه کې د سخت زور د وهلو له امله د لوبغاړو سومي او متو نه سره شنه کېږي.

## توپاچول:

دا لوبه په کلیو او بانډو کې هلکان او ځوانان په ډېره مینه سره کوي او د زور آزموینې او د لرې توپ اچولو په زړه پورې ورزش گڼل کېږي، کله چې په یوه هوار سولېن (رېگین) میدان یا شود-یاره کړي پټي کې چې لرتې یې ماتې شوې وي ځوانان او هلکان د توپ اچولو د پاره سره راغونډ شي. د پټي یا میدان په یوه سر کې د خاورو موړه (موړ) یا یوه اوږده تیږه او یا د لرگي تخته اېږدي د پټي له بل سره نه په تېزه منډه (مغاسته) ورته راځي. کله چې موړې، تیږې او لرگي ته راورسېږي پښه په اېږدي او مټ پورته خوا ته توپ وهي، په دې ډول سره توپ لوبغاړي توپونه اچوي هر چا چې زیات توپ ووا هه هغه زور ور بولي، ځکه چې په دې لوبه-کې لوبغاړي منډې وهي نو د صحت او روغتیا له پاره یې گټه لري.

## لاسونه ورکول:

په کلیو او بانډو کې دا لوبه ډېر کوچني هلکان چې اته او نهه-کلن وي سره کوي، دا لوبه په حقیقت کې د جنگیو لوبه ده او داسې

یې په خوشالی سره په مینه اجرا کوي :

دوې جنګي مخامخ سره درېږي. ښی لاس په ښی لاس ، کین لاس په کین لاس کې سره ورکوي د شاه او ښځو اته ملا او سرونه کږ وي او دوا ړه پښو سرونه سره نږدې او لګوي له دې وروسته چارچا پېره چې لاسونه یې کلک سره نیولي وي تاوېږي او یوې خواته داسې خبرې سره کوي .

یوه وایی : مال ( مل ) یې بی کر تر کو تر .

بله وایی : مال ( مل ) بی بی چلم چلم .

دوی دا په ډېره مینه او خوشالی سره وایی او ترشا ه ژ نګیدلی ځای په ځای سره تاوېږي او راګرزي .

## غوړ اشتی :

په کلیو او بانډو کې شپانه په خپلو غېلو اورمو پسې کوچنی تبرونه او تبرګی غر ه ته له ځان سره چې ملاوې یې په پړي تړلي وي وري، کله چې په غره کې یوه سمه او هوا ره ورشو پیدا کړي یو او بل ته سره وایي راځۍ غوړ اشتې سره وکړو یعنی د تبرګیو په تېرو خولو په د تبرګیو لاستی سره و ولو .

دوی خپلو تبرګیو ته د غوړیشتی لاستی وراچولی وي ځکه د ـ الو به د غوړ اشتو په نوم یادوی. یو هلك خپل تبرګی په ځمکه ورته اېږدي نور هلکان یې له یو ې تا کلې فاصلې نه په خپلو تبرګیود هغه په ځمکه ایښی تبرګی لاستی ولی که وه یې ویشت او د تبرګی خوله ور برابره شوه غوټ یې پرې کوي او که تر ې خطا شي دا هلك تبرـ ګی را اخلي ، دا بل تن چې وار یې خطا شوی تبرګی ورته اېږدی او نور یې ولی د ویشتلو سره یې لاستی غوټ پرې کوي دالو به شپانه

په غره کې په ډېره مينه سره کوي او خپل وخت خوشاله پرې تيروي

## پړی له سر تاوول :

دالو به په کليو کې وار ماشومان که هلکان وي که جلکۍ په خوشالۍ سره دخپلو کوزو نومخ ته د رنده کې داسې سره کوي : د يو نيم يادوو متر و په اندازه پړی رااخلي په دواړ لاوسو کې يې نيسي په جوتو پښو مخ پورته ټوپ وهي پړی ددواړو لاسو په قوت د پښو د ټوپ سره له پښو وباسي او ترسر يې را تاووي بيا په داشان ټوپ وهي پړی په ډيره تيزی سره له پښو وباسي او له سر نه يې تاووی . دا پړی ترهغې پورې لو بغاړي ترسرا و پښو تاووي څو چې دټوپ په وخت کې پړی ت‌او نه شي کړی او بند شي . کله چې له پښو او سر نه پړی تاو نه کړي سو نحی بل تن پړی ترې اخلي هغه يې په ډيره تېز ه او تنده بڼه له سرا و پښو نه تاووي . دالو به ماشومان په ډ ېره خوښی سره کوي او دا غړ هم له خولې و رسره وباسي : « گر منځکه آسمان منځکه » دگر منځکه آسمان منځکه په ويلو سره يې سر و نه گرزي او په منځکه لو يږي .

## مچوغنه ويشتل :

د منگلو په کليو او باندو کې دوولس کلن او شپاړلس کلن هلکان چې په خولو غېلو او رمو (وزو ، بزو ، مېږو) پسې غره اوورشو ته ځي ، هرو مرو په کو چنيو تېږ گيو برسېره دځان سره شپېلی او مچوغنې هم وړي ·

په منگلو کې مچوغنې دمېږو دوړيو نه چې سنی شی يعنې کله چې وړی دځرخنی په واسطه وور يشتل شي نو د دغو سنيو له تارو نو نه جوړ يږي · کله چې سنی دمچو غنې دجوړولو له پاره تيارې شي

په کاله کې مشرې ښځې دخپلو زامنو له پاره چې په مال پسې ځي
هغوته مچوغنې له ښيو نه داسې جوړوي :

دیو یا یونیم متر په اوږدوالي پنځوس اوشل تاره ښی راخلی
بیادا یو او یونیم متر اوږدې ښی په منځ کات کوي. دمنځ په کات
کېدو سره د تارونو له نیمایی نه یوې او بلې خوا ته د لسو یا پنځلسو
سانتیو په اندازه برخه په خاص ډول سره د سر د کوخیو یا د مزري
د ښپلیو او پزې په شان او بې (پېړي) ، دې برخې ته چې تېره د و یشتلو
له پاره په کې ایښودل کېږي پتکې (پتك، پتاخ) وایی د پتکې
نه یوې او بلې خوا ته د مچوغنې بچکې او بچوي جوړېږي، د مچوغنې
بچکې او بچوی دوړین (اوښین) پړي په شان کلك غړل کېږي د یوه
بچکې سرته ګوتړۍ جوړوي چې دا ګوتړۍ د ښي لاس د شهادت ګوتې
ته وراچول کېږي او د بچکې بل سرته نرمه ګنډه ور کوي ، کله
چې مچوغنه په دې ډول سره تیاره شی، نو هغه هلکان چې مچوغنې
له ځان سره وړي دغره له سرنه خپل مال په دې واسطه سره رااینه
وی، داشان په مچوغنه سره کله کله مال دغلو او لیوانو نه هم
ساتل کېږي داځکه مچوغنه په ډېر قوت سره د سلو او یا زیاتو
مترو په اوږده فاصله ویشتل کېږي، د کلیو ماشومان کله کله
دلو بې او ساتیرې له پاره مچوغنې سره ولی ، د مچوغنې د ویشتلو
لوبه داسې ده چې دوی به په یوه کیله سره د رېدل تولو به په یوه
وار سره د مچوغنې پتکې کې ګردۍ تیږې ایښودلې، د تیږو او ګاټیو
دا ایښودلو نه وروسته به یې د قوت او زور یادګاټی دلرې شړلو له
پاره مچوغنې ترسر تاوولې او په یو وار به یې د مچوغنې د هغه بچوي
لو رئ چې نرمه ګنډه یې وراچولې وه خلاصه وه او ګاټی به په لرې
ځایو کې لګیده، د هرچا ګاټۍ به چې ډېرلرې تللې وه هغه د نورو نه

زور ور او کلك وو، په‌دې ډول سره د دوی ترمنځ د زور او قوت درجه‌وار په‌وار د کاتې او غوتې د لیری او نږدې لو یدلو په‌واسطه سره معلومیده ، د مچوغنې د و یشتلو لو بې پخوا چې منګلو ر مې د رلو د لې ډیر رواج د رلود خواوس یې هغه پخوانی دود ډیر کم شوی دی .

## دیده کې ویشتل :

په منګلو کې د کلیو او با نډو لس او دو لس کلن هلکان د غرـ مو نی (پسرلی) په لومړ نیو ورځو کې چې و نې نو ې او‌به واخلی دخرې (۱) و لې تنکې نری لښتې چې د لاس دخچنې ګو تې په‌ا ندازه غوټوالی و لري پر یکوي او بیا د لښتې له بیخ نه د سر لو ر ي ته د دوو یادر یو لو یشتو په‌ا ندازه برخه یې د لاس‌دورغوی په‌زور سره تاووي او دو لې پټو کې (پستو کی) دولې د لښتې له لرګی نه په دې قوت سره جدا کیږي، هلکان دا تاوشوې برخه په‌لر او‌بر سر کې ګرد ی پر یکوي اود مال د پستو کی په شان یې د لښتې له‌لرګې نه ویاسی اودا ا یستل‌شوې برخه چی د شپیلی په شان سوری وي. د تو پك د شپیلی یادروې په خپر نس لرې په‌لاس کې یې اخلی او دیده‌ـ که (دیده کې) یې بو لی ، کله چې دیـد ه که جـو ړ ه کی، د دیده کې دو یشتلو له پاره یو مو ټې خـو شتې (لمدې) نرمې ختې را اخلی‌ د هغو نه د چڼو (نخودو) یاد جوار ود دا نو په‌شان غو ندارې او دا نې جو ړوي او بیا یوه یوه‌دا نه یا غو ندا ری د دیده‌ـ کې په یوه سراو خوله کې ا یږدي اود خولې د باد په قوت یې پو کوي اودخاوروغو ندا ری‌دخولې د قوت په واسطه سره‌د دیده کې

---

(۱) دولو دونې له ډولو څخه یو ډول دی، ولې په‌څو ډولو دي لکه توره وله، زیړه وله (منجرومی، مجنون بید) او‌خره‌وله.

د بلې خوا نه د کوچنۍ با دي توپك د کلتوس او گوجو په شان خارجيږي او په دې ډول سره دد يده کې و يشتل صورت مومي.

کله چې هلکان د يده کې جوړې کړي نو په يوه فاصله کې ځانته يوه نښکه يا څلۍ اېږدي او دد يده کو په واسطه يې ولي ، هرچا چې دا نښکه او څلۍ وويشت هغه د نورو نه د سرنو سره وري او سيرلې گڼي ، دا شان کله کله هلکان دوې ډلې کېږي دد ښمنو په څير دد يده کو په واسطه يو او بل سره ولي ، کله دا لوبه ډيره سخته شي او هلکان دخاورو په گا ټيوا وغونډ اريو يو او بل ستر گو ته سره ولي ، ددغو يشتلو په وخت کې کله يو نيم داسې کلك ولگيږي چې سترگه يې ړنده شي . په هرصورت دد يده کوو يشتلو لوبه په ځنگلو کې ډيره خوندوره ده کيدای شي چې د توپك د نسل او شوملې جوړښت هم له دې نه منځ ته راغلی وي، خو په دې برخه کې پوره څيړ نې او مستندو حقايقو ته ضرورت ليدل کيږي او ترهغې پورې دا خبرې د باور وړ نه دي هسې ديا رانوکې اوشپ ښکاري.

## د لمبۍ يې (لامبو) لوبه :

په ځنگلو کې که څه هم داو بو (آب بازي) لوبه نشته دا ځکه هلته دا سې لوی سيندو نه و جو د نه لري چې دوی په کې ولا مبي ، دا شان په ځنگلو کې د لمبلو لپاره ځا نگړي ځا يو نه هم نه شته چې په عام ډول سره لا مبو په کې تر سره شي ، د دې و جې له امله دځوا کا نو او سړ يو لا مبل په ښکاره يا کې يو لوی عيب او شرم گڼل کيږي ، داو جه وه چې موږ دلو بو په دې لړ ی کې لمبلو ته څه ا شاره ونه کړه ، خودا چې د کلمیو هلکان دسو ميخو رپ دو يشتلو نه ورو سته په گډه سره لا مبي نو له دې کبله دې ته اړ شوو چې په خو ټکيو کې ورته لنډه اشاره وکړو:

منګل چې په عمومي ډول سره خپل پټي او کښو نه د کار پزوږه او بو پنه (خروب) کوي ، داوړي او وسې په وخت (سوسم) کي د کار یزو او به لړې کیږي او پټي پرې سم نه او به کیږي ددې له پاره چې دوی خپل پټي او به کړي نود کار یز ه له خولې نه دسلو یاد وو سوو یا څلور و سوو مترو په لرې فاصله یو ځای او بو ته ژوروي په دې ژور ځای کې او به ډ نه او تم (تام) کیږي ، کله چې دا ژور ځای ډک شي بیا یې خوله خلاصوي او او به د پټي له پاره پټیو ته ترې شړي او پنه کوي یې ، د دې ژور ځا ی ته چې دوی د اوبو له پاره جوړ کړی «څلپر» ویل کیږي په ځینو ځایو کې یې «تلپر» هم بولي . د کلي وا ړه ماشومان داوړي په وخت کې چې داله او بو نه ډک څلپر وګوري بې له درنګ نه کالي و باسي او له پاسه او بو ته ور ټوپ کوي او لا - مبېږي سره په کې وهي ، هرڅوک چې د څلپر ه له یوه سر نه بل سر ته زر و ر سېد هغه دټو لو نه تکړه دی ، په دې ډول سره اول دوهم ، دریم او څلورم تکړه هلکان سره معلو میږي او د اوبو لا - مبېیه یا لو به د دو ی تر ستړ یا پورې دوام کوي . ځوانان او سړي د عیب او شرم له مخې نه پکې لمبیږي .

## سو مبخوړپ و یشتل :

د منګلو په کلیو او بانډ و کې سو مبخو ړ پ هم لس کلن او دولس کلن هلکا ن دد یده کې په شان دخرې ولې له پوټکی نه جوړ - وي ، تو پیر یې دادی چې د سو مبخوړپ لښته دد یده کې له لښتې نه غوټه او دلاس دګاټې ګو تې په اندازه پر بړ و ا لې لري ، بل تو پیر یې داد ی چې په سو مبخوړپ کې خته نه و - یشتل کیږي بلکې دولسی لـه لـر ګـی نه ور تـه د کـړ تـو س په ا ند ا زه کو چنی کو چنی لر ګی د تسپو په شان جو ړ وي

کله چې د کلتوس په شان ارګی ورته جوړ کړي نو دا ارګی دوی
بیا د سومبخوړپ یادولې د پوستکې دشپیلی په یو سر کې اېږدي،
تردې ورو ستەدولې هغه ارګی چې سومبخوړپ ترې را ایستل شوی
را اخلی دا دګز یا میل په شان دی، د سومبخوړپ په دې لوی ارګی سره
د کړ توس په څېرو وړ ارګی چې لرې لاړې (دخولې ناړې) ورا-
چوي پرې پەزور سره د لاس پە قوت مخې تەوهی او تېله کړي یې
او د سومبخوړپ له بل سر نه ددې میل په قوت سره هغه کوچنی ارګی
په لرې فاصله ویشتل کیږي ، پەدې ډول سره د سومبخوړپ لوبه
د کلیو د هلکا نو ترمنځ په ډېره مینەتر سره کیږي ، امکان لري
چې د دمبل پور، مشپو را و د چکمکی توپکو جوړښت له سومبخوړپ
نەروا ج شو ی وي ، خو تر هغې پورې چې په دې برخه کې
مستندا سناد ترلاسه شوي نەوي دا خبره د باور وړ نەده هسې یو خیال
ښکاري.

اول دې ماسره مستی (لوبې) کړې

اوس د پښو په څوکو ځې چې پېغله یمه

اول دې غېلې (رمې) را سره پووې (څرولې)

اوس د پښو په څوکوځې چې پېغله شومه

اول دې لوبې را سره کړې

اوس د جستو پر څوکوځې چې پېغله یمه

**غنجلۍ :** د منګلو په کلیو او بانډو کې د غنجلۍ لوبه هغه
کوچنی ماشومان او ژنکی (سره خولەځوانان) چې عمر یې له اتو
کالو څخه ترد یارلسو او څوارلسو کالو پورې وي پەلا یه (وزګار)
وخت کې پەډېره مینەسره کوي ، د غنجلۍ لوبه د ماشوما نو لەخوا
په دووځا نګړیو بڼو داسې اجرا کیږي :

**۱- د کېښناستو غنجلې** : د کېښناستو غنجلې له پاره د کلي امخولي وور کې د پښو او شپږو گزو په اندازه اوږد لرگی (گودره ، ستنه ، لاړی) په ځنگل کې راپرې کوي، دخړ نکي (۱) داوږد لرگی له پرې کولو وروسته دغره نه هغه هوار میدان او پټی ته په اوږو راوړي چې دوی لوبې او مستی په کې کوي .

دلوبې میدان ته چې دااوږدلرگی راورسوي، دواړه لوري یې تراشي چې ستونه یې هوار شی اودلوبې لوبغاړي یې پرمخ باندې دغنجلې دوهلو له پاره پرې کېښنی ، کله چې دالوی لرگی یاگودره دلوبې له پاره تیاره کړي نودلوبې دکولو له پاره دمیدان په منځ کې دلویو ونو سوټکی (بیخ،ویخ) ورته لکوي او دهغې دپاسه داگودره اېږدي، کهدونو سوټکی نهوي دمیدان په منځ کې پیله (دتیږو باره) دیومتر په لوړ والی ورته پخه جوړوي او دپیلې له جوړېدو وروسته گودره دپاسه پرې اېږدي، څه وخت چې گودره دسوټکی اوپیلې دپاسه کیږدي، نولوبغاړي که دوه تنه وي یودلرگی په یوسر باندې بل تن یې په بل‌سر باندې دپاسه کېښنی ، که څلور تنه وي دوه یې په یوسر اودوه یې په بل سر باندې کینې کله چې لوبغاړي د غنجلې د لرگی په سرو باندې کینې ، نو دغنجلې دوهلو له پاره یووار دغنجلې یوسرمځکې ته په قوت تټیتېږي بل‌سریې هوا ته پور ته جگېږي ، بیا یې دا بل سرمځکې ته تټیتېږي اوبل سر یې هوا ته جگېږي، پهدې دول سره

---

(۱) خړ نکې دلمځې دونې کوچنی غوړ گی (نیالگی) دی چې دشلو او پنځه ویشتو متروپهاندازه‌لوړوالی لري، دځینو خړ نکیو لوړ والی څلوېښتو گزو ته هم رسیږي .

دغنجلۍ لوبه دسرو په جګېدو او تېښتېدو سره ترهغه وخت پورې دوام کوي څو چې یې لوبغاړی سره کوي اوزړه یې غواړي، دغنجلۍ دا لوبه ملګري ډېره په خوښۍ سره ترسره کوي دا ځکه دوی دا لوبه ډېره خوندوره او اسانه ګڼي .

**۲ـ دتاوولو غنجلۍ** : په منګلو کې دتاوولو او ګرزېدو غنجلۍ له پاره نسبتاً یوه نرۍ غونډې دپنځو او شپږو ګزو په اندازه ګودره (مټه ، لاړی ، دستګ) له ځنګل نه راغو څوي، پټو کې ترې تراشي اوپاکوي یې، دپټو کیو له پاکولو وروسته دګودرې یو منځ په غوټ منځ کې دپنځو اوشپږو سانتیو په ژور والي سره چارچا پېره ددا یرې په څېر ژغوری (کنده) کوي ، د ژغو ر ګی دجوړولو نه وروسته ددوو مترو په اندازه اوږدګردی لرګی راخلي یوسر یې په مځکه کې دنیم متر په اندازه کلک ښخوي، کله چې دالرګی په مځکه کې ډېر سخت او کلک ښخ کړی ، بیا یې پاسنی سرښه ښوی کوي ، داددې له پاره چې په پاسني سر باندې یې ژوره شوې ګودره دپاسه ایږدي، دګودرې ژوره ځای ددرول شوي لر ګي پا سنی ګړ دېر دښو ی شو ي سر ته وراچوي او دموږې (لک شوی لرګی) سر ژغورګی ته ورلوېږي، په دې ډو ل سره دتاوولو غنجلۍ دلوبې له پاره تیاریږي، ددې له پاره چې دغنجلۍ پاسنۍ ګودره دلوبې په وخت کې ددرول شوي اولک لرګی په سر باندې په اسانۍ سره وګرزي دموږې په سر باندې څه اندازه رنځره (لنځره ، زرنه ، ننځره) اچوي، د رنځړ و له اچولو وروسته دګودرې په یوسر باندې یولوبغاړی په خېټه مخ ښکته څملی ، په بل سر باند ې یې بل لوبغاړی همدا شا ن مخ ښکته په خېټه څملي او پښې یې مځکې ته کوږی اوځوړندوي ، که لوبغاړي ددوو تنو نه زیات

وي ، شپږو یا څلورو تنو پورې وي دوه یادرۍ یې په یو سر مخ ښکته په خپتو څملي او دوه یادرۍ یې په بل سر باندې همدا شان څملي ، کله چې دغنجلۍ دګودرې په دواړو سرو باندې په شمار سره مساوي او برابر کسان دتولې (وزن) دمساوي ساتلو له پاره په‌خپتو مخ ښکته څملي نودلوبې دپیل له پاره دمیدان له منځ نه یو تن چې دوی د ګودرې دتاوولو له‌پاره ټاکلی وي را جګېږي دغنجلۍ ځای ته ځان را رسوي ګودره په‌سوارو ( سپرو ) کسانو پسې په کلکه تاووي کله‌چې ګودرې ته دلګ‌اوښځ‌شوي لرګی (غټه‌موړې) په سر باندې دوه درې واري سخت څرخو نه ورکړي نودا تن چې ګودره یې پسې تاوکړې له‌میدان نه په‌منډه‌سره ځان یوې خنډې ته وباسي چې په ګودره سر، غو ځ نه شي .

هغه لوبغاړی چې دګودرې په یو اوبل سر باندې په خپتو سواره دي په‌ډېره تېزۍ سره‌دغنجلۍ ګودره سره‌تاووي، دغنجلۍ دالوبه‌ډېره په زړه پورې‌ده، خوداچې ددروند شوي (خم‌شوي) لرګی دپاسه دغنجلۍ اوږده ګودره په زیاته تېزۍ سره د ماشین دڅرخ په شان څرخېږي کله‌کله یو نیم تن دسرد ګرزېدو په اثر ترې را غورځي، لاس اوپښې یادوجود نورې برخې یې ژوبلېږي.

پردې برسېره کله‌داسې هم پېښېږي‌چې ګودره د تېزې تاوېدو په‌وخت کې دموږې له‌سر نه مخ پورته خطا کېږي او دځمکې پر مخ باندې رالوېږي ، لوبغاړي لرې فاصلې ته شړي او کلک کلک ټپي کېږي ، په کیلو او بانډو کې دالوبه هلکان دساعتېرۍ له پاره په زیاته مینه اجرا کوي‌خو داچې لوبغاړي په کې زخمي او ځو ځېږي نو له دې کبله یې له‌لوبې او مستۍ نه ډډه کوي.

دغنجلي په دې لو به کې لو بغاړي سر بېره دخپلو په ځملاستو دګودرې له پاسه کېني او دې لو بې ته دوام ور کوي ، دغنجلي د تاوولو په وخت کې دګودرې د پاسه کېناسته زيات خطرلري دا ځکه دغنجلي ګودره په ډېره تيزۍ سره تاوېږي اولو بغاړي ترې را غو ر ځي ، سرونه يې په دې حالت کې ډېر ګرزي داوجه ده چې ددې لو بې داجرا له پاره له کېنا ستو څخه پرسخې په خيټه وربا ندې ځملاسته ښه ګڼي .

**ټالۍ (ټال) وهل** : دمنګلو په کليو او بانډو کې دټالۍ وهلو لوبه برسېره په دې چې واړه ماشومان يې دخوشالۍ او ساعتېرۍ دپاره په خپلو منځو کې په خوښۍ سره کوي ، ځوانان او پېغلې يې هم داختر په ورځو ،د نوي کال او څرمونې په لوسرۍ ورځ ، دځينو ښاديو او خوشاليو په ورځو کې په زياته لېوالتيا او مينه اجرا کوي ، ټالۍ وهل په منګلو کې په دوه ډوله ده .

**۱ـ ديوه تن ټالۍ** : ددغه ټال دوهلو له پاره څوتنه ا ماځولي دغره په يوه هوار ځای کې چې ونې ولري سره غونډېږي ،دټالۍ دوهلو له پاره هغه او ښېن يامزرين (بدريژه) لوی پړی چې داتو او اووګزو (متره) په اندازه اوږدوالی ولري دامنځې ونې په يوه لوی منډه (شاخ ،خونګ، ځانګه) کې را کوړ يوي (راځوړندوي) ، کله چې پړی دټالۍ دوهلو له پاره راواچوي دمځکې له مخ نه يې نيم يا يو مترجګ دواړه سر و نه سره کلک ګنډه کوي ، د ټا لۍ دترړلو نه وروسته ، په وارسره دملګريو له ډلې نه يو يو ورخېژي او يوتن په اول سر کې ټالۍ پسې پورې وهي چې هوا وکړي، دټالۍ دهوا کولو نه وروسته هغه هلک يا دټالۍ وهونکی ترمخ او څټ په ټال کې په خوشالۍ سره زنګېږي، نور ملګري ور ته

وایي بس ده ټاټالي ډېره ووهله سوړ ته وار را کړه ، په دې ډول سره د يو تن ټالي د ملګريو ترمنځ ترهغه وخته پورې په خوشالۍ سره وهل کېږي څو چې يې زړونه غواړي ، دوی دې ساعتېرۍ ته «څوندړې» هم وایي او داسې سره وایي: «يره دټالي ښه څوندړه ده ، سړی چې په کې سپورشي اوټال وخوري ښايي زړه نه کېږي چې ترې را کوز شی » .

**۲ـ دڅو تنو ټالۍ** : دڅو تنو ټالي کته مته د يوه تن دټالي په څېره ده ، څو توپير يې دادی چې ددغې ټالي له پاره څو دانې اوښين يامزرين پړي يو ځای سره ګنډه کوي ، له څو پړيو نه چې يوپړی جوړ کړي ، ښايي د لمنځې په يوه ډېره جګه ونه کې چې کلک ښاخ ولري را کوړ يوي (ځوړندوي) ، څه وخت چې دټالي پړی په يوه څونګ (ښاخ) کې راځوړند کی ، دمځکې له مخ نه يې د يو يا يو نيم ګز په اندازه پورته (پورته) دواړه سرونه داسې ګنډه کوي چې د يوه متر په اندازه اوږد کلک لرګی چې يوه څېړ يا يو ګروزی پلنوالي ولري رااخلي ، دټالي د پړيو په سر کې د لرګی يو سر او د پړي په بل سر کې د لرګی بل سر کلک اوسخت ګنډه کوي چې لرګی د پړيو له سرونه دټالي وهلو په وخت کې خلاص نه شي ، کله چې دڅو تنو ټال دټالي وهلو له پاره تيار کړي نو هغه ملګري چې غواړي ټالي ووهي شپږ يا څلور تنه ورخېجي دري يا دوه يوې خواته ، دري اودوه بلې خواته لرګی دپاسه مخامخ سره درېږي يا په کې کيني ، د پښو اولاسو په قوت سره ټال ته ترخت اومخ لوريو ته حرکت ورکوي چې هوا پيدا کړي ، دالوی او اوږدټال زياته هوا کوي ، له دې کبله چې په پړيو باندې دټالي څوړ لو وخت کې زور راځي نو کوم پړی يې شکېږي ، د شکېدو په وخت کې لو ښغاړي

اري ځای ته شړي او دهغو بالاسو نه یا پښې یا دوجود نو رغړي ژوبلیږي ، له دې اسله دغه تالی هروخت زیاته نه وهل کیږي ، داځکه چې دسر خطر په کې دی . په هرصورت په دې ډول سره دتالی وهلو دا پېړه دځوانانو ترمنځ په ډېره خوشالۍ سره اجرا کیږي او ځوانان خپل وخت پرې خوشاله تېروي ، په ولسی ادب کې يې ستاینه داسې راغلې ده :

**۱ ـ په پا لو نو کې :**

ولو پدم ـ دتاله ولو پدم زارزار لا لییه (لا لیه) ـ ولو پدم
آشنا زما دځنګه کېنه * ولو پدم ـ دتاله ولو پدم
که تهشرمیږې لاس به زهدروا چومه

ولو پدم ـ دتاله ولو پدم

ولو پدم ـ دتاله ولو پدم زار زار لا لییه
د تاله ولو پدم

* * *

وه دی تال مومینې یو واري راشه لیو نی درپسې شومه
وه دی تال

ګله دې غم را باندې زورشی
وه دېتال

ګله دې مینه په در ند وکا نیو تلمه + وه دې تا ل
وه دېتال مومینی یو واری راشه لیونی درپسې شومه
وه دې تال

* * *

زانګم دجانان سره دمینې په تالو نو کې
ګرزم په ګلونو کې راګرزم په خیالونو کې
دلویې لا رې مسافره
راګرزم په خیالونو کې

په دیدن سور شوې کهٔ مخ بیا دروا رومه
راګرزم پهٔخیالونو کښې
زانګم دجانان سرهٔدسینې په تالونو کښې
ګرزم پهٔ ګلونو کښې راګرزم پهٔخیالونو کښې

**۲ - په سندرو (لنډیو) کې :**

تال تهٔختم بنګړی مې مات شول
ګناه دیارده چې کوي اشارتونه
تال کښې زانګل درتهٔ ښه نه دي
بوی دې د زلفو شمال وري کوي سرګونه
تال مې بانه مطلب مې ته یې
چې دسر کو شنډو دې وکمه سیلونه
تال سي پلمه مطلب مې ته یې
چې دسر کې سالودې وکمه سیلونه
کله دخیال سلطنت جوړ کم
کله دفکر تال کښې کېنم وزانګمه

**ټنګوونې** : دمنګلود کلیواو بانډو ماشومان دزیاتو کلیوالی لو بو ترڅنګ دټنګوونی لو بهٔ هم په ډېرهٔخو شالی اوخوښۍ سره په مینه اجرا کوي ددې لو بې دسرتهٔرسو لو بنه په دوی کې داسې ده:
څو تنه اماوي هلکان سره یو ځای کیږي کله چې سره راټول شی نو پهٔیوځای کې اور بلوي چې ښه سورا نګاریې تال (توی) شی لهٔدې وروسته وارپهٔوار سره یو یو تن لهٔدې سره انګارنه یوه سره سکروټه پهٔ څهٔشی سرهٔراخلی دیوې ستری اوغټې پلنې تیږې پرمخ چې زیاړې (لاړې ، وشکې) یې پرې اچولې وې دلاړود پاسه داد اور سره سکروټه ایږدي . لهٔدې وروسته هغهٔماشوم چې دټنګوونی

لو به اجرا کوي کوچنی تبرگی (تبر) په دوا ړولا سو کې اخلی مخ پورته یې د ستو په قوت جگوي او په زور سره یې د پاسه په دې سره سکروټه باندې راخوشې کوي ، د تبرگی په څپټې سره چې دا داور سکروټه په زور سره ووهی یو سخت غږ ترې پورته کیږي کله چې د سکروټې نه د چا و دیدو یاد تبرگې د څپټې په وهلو سره او از پورته شی نور ملگري ورته وايی چه ټنگ دې ترې وباسه اوس زموږ واردی موږ به په خپل وار سره هم ټنگوونی وټنگوو، د دې لو بې نوم د سکروټې د غږ نه اخستل شوی دی دا لوبه تر هغه وخته پورې د ملگرو په منځ کې جریان اري څو چې سور انگار د تبرگی د څپټې په وهلو سره خلاص کړي .

## د لمد و خټو ویشته :

په کلیو او بانډو کې د ښار په شان د ماشومانو لپاره د لوبو عصري او موډرن وسایل وجود نه لری څو چې په هغو سره ماشومان لوبې وکړي نو د دې له پاره چې د وی خپلی ساعتېری په گډه سره اجرا کړ ي د نورو ز یاتو او ډیرو مستیو (لوبو) په لړ کې د تو ندو اولمدو خټو د ټکوهنې او ویشتو لو به داسې په خپلو منځو کې په خوښی سره چې زیات ورته خوشال وي سرته رسوي :

څه وخت چې څو تنه سره یو ځای کې د دغې لو بې له پاره را ټول شی په اول کې څه اندازه خاوره په اوبو سره خوشتوي (لمدوی) کله چې خاوره خوشته کړي بیا هر یو یوه پلنه تیږه یا څو پلنې تیږ ې را پیدا کوي هر یو تن په خپل لاس کې دا لمده خټه را اخلی غو نډاری کوي یې اود پیالې په څېر یې جوړ وي د پیالې په شان یې چې جوړه کړي نو یې په ښی لاس کې مخ پورته جگوی ا و په

زور سره یې د پلنې اوهو اري تیرې پرمخ باندې دژړو اوخولی په لوړولی . څنګه چې د تیرې پرمخ دلګیدو په وخت کې دخاورو پیاله په قوت سره لګیږي او د ننه کو غې برخې اوږد ته یې هوا دا خلیږي نود هوا په داخلیدو اوسختو لګیدو سره د پیالې شا یا څټ سوروی سوروی کیږي اوسخت غږتري پورته کیږي . دې غږته هلکان ډیر خو شالیږي په دې ډول سره همز ولې ملګري هریو دراوړل شوې تیږې د پاسه داد خاورو دویشتو اوله هغې نه داواز د پورته کیدو له به په مینه او خوشالی سره سرته رسوي ملګرې په بېر بېرسره خاندې اودامستې سره اجرا کوي ...

**سر په څنګه او بېتل** : دمنګلو په کلیو کې ماشومان کله چې د درنده (درمنده) میده بوز (بوس) پیدا کړي نود خپلو ز یا تو لو بو اومستیو تر څنګ د سر په څنګې اوبېتلو لوبه په ډیره خوشالی سره داسې په کې کوي چې د درمنده د یوه سر نه تر بل سر پورې سر په څنګه په کې اوړي ، سر په مڅکه کیږدي او پښې مخ نیغې هوا ته جګې کړي او اوړي ، په دې ډول سره دا لوبه د درمنده له یوه سر نه تر بل سره پورې د سرا وپښو په اړولو سره اجرا کوي . سر بیره په درنده کوم ځای کې چې نرم سو ل (ریګ) وي هلته هم دا لوبه په مینه اوخوشالی سره کوي .

**بې کوتو بې** : د بې کوتو بې لوبه واړه ماشومان په ډیره مینه سره دخوښی اوخوشالی داواز ونو په پورته کولو سره یوله بله سره کوي . ددغې لو بې له پاره شپږ یا اووه تنه سره ډله اویو ځای کیږي کله چې دا څو تنه سره یو ځای کې غونډشي خپل لاسونه د مځکې پرمخ کیږدي ورغوی یې دمځکې پرمخ نیولی وي نو د یوې څنډې یالوري نه یو تن چې په مځکه یې لاسونه نه دي ایښې دا لو به داسې اجراکوي :

ديوه لوري او پاوڅخه دهلکانو دلاسو په څټ باندې خپل لاس ايږدي او داسې وايي :

«بې کوتو بې ـ زړى (زوى ، زوړى) دې لوړ (لاړ) په‌غدى ماشو پړانګ ډ بلې » .

د «ماشو پړانګ ډبلې »لوبې اوخبروچې په کوم تن ختمه شي د هغه تن نه بيا له سره دا پورته خبرې شروع کوي او د « بې کوتو بې » لوبه په دې ډول سره‌ددوى ترمنځ ترهغې پورې روانه‌وي څو چې يې زړونه غواړي او خوند ور کو .

**بنډت :** د کابو ماشومان دمنډتې (زردالو) زړي کله کله يو له بل نه سره ګټي خو کله کله په‌دې‌زړ يو (منډکو) لوبې هم سره کوي د لوبو له ډولوڅخه يې د بنډت لوبه داسې ده: زړي سره اچوي يو له بل نه يې ګټي زړ ي چې هوا ته واچوي دمځکې پر مخ چې راولو يږي که دازړي سره خښ او جوخت ( پيوست ) شي يعنې يو له بل‌سره ولګي نو وايي « بنډت »شوه بيرته يې اخلي سره‌ولې يې نه‌اوبيا يې له سره اچوي. په‌دې ډول سره د بنډت لوبه په‌ډيره مينه يو د بل‌سره اجرا کوي، پردې برسيره تولک‌جوت هم پرې کوي.

**لټکه جى :** د لټکه‌جى لوبه‌دوې‌ډلې سره کوي، دوار په نيولو سره يوه ډله په بله‌سوار يږي (سپر يږي) لاندې ډله مجبوره چې سواره (سپره) ډله تاکلې ځاى ته‌ورسوى، که‌چيرې لاندې ډله سواره‌ډله ځاى ته ونه رسوي او دلاندې ډلې يو تن ستړى شي اوخپل نفر معلوم ځاى ته په شاه يونه سي نودسوارې‌ډلې‌تن‌وايي « لټکه جى ونه رسيد پاتى شو» سواره‌ډله بيا پرى سوار يږى هر کله‌چې لټکه‌جى ور سوې‌نو بيا دا بله‌ډله‌دسپريدو چانس ترلاسه کوي او په دې‌ډول سره دا لوبه دوى په مينه اجرا کوي ...

**د لاسو ټالۍ**: د منګلو په کلیو او بانډو کې کله چې واړه هلکان
د یوې ونې لاندې سره غونډ شي ، په دې وخت کې یو هلک نورو ته
وايي : راځئ د دې ونې په یوه څونګ (ښاخ ، څانګه ، منډه) باندې
په ټالۍ ووهو ، نورو ته دده خبره خوندوره کوي ، هر ښاخ چې ورته
د مخکې مخ ته نږدې وي او دوی ټوپ وراچولی شي ، هغه ته مخ پورته
ټوپ وراچوي او په دواړو لاسو سره یې کلک نیسي او تر مخ او
شاه ټالۍ وهي ، په دې ډول سره ټول هلکان وار په وار سره دې
ښاخ ته ټوپ وراچوي او د ساعتیري له پاره ټالۍ پرې وهي ، دا په
دې مفهوم چې د خپلو لاسو په قوت سره د ونې پر ښاخ باندې تر مخ
او شاته ځانګو وهي او خپل وخت په خوشالۍ سره تیروي .

**ګرزندی ګرزول**: د ګرزندي د ګرزولو له پاره هلکان د لاس
د ساعت یا د مخ د لیدو د هینداري په اندازه یو لرګی رااخلي ، ګرد-
برد (ګرد برد) یې د دایرې په څېر ژر او ښکلې تراشي ، دواړه
مخونه یې له تراشلو وروسته ښه ښوی کوي ، تر دې وروسته یې په
غوټه منځ کې سوروی (سوری) کوي او بیا د متر ګوډ تورو لو سلا یې
په شان یو لرګی رااخلي لاندې سر یې ښه تېره کوي ، پاس سر یې
ګرده ښوی کوي او د ګرد برد سوری شوي لرګي سوروي کې یې
کلکوي ، پاسني سر یې د لاس د ګتې (ټټې) ، شهادت او منځ ګوتې
په واسطه سره نیسي د مخکې پرمخ یې په قوت سره ګرزوي او ګوتې
ترې لرې کوي ، په دې تاویدو سره دا لرګی درې یا څلور
دقیقې ګرزي ، له دې کبله یې ګرزندی بولي ، دا مستې او لوبه
هلکان په ډېر خوند سره کوي ، ځینې پښتانه یې « لټو » هم بولي .

**غرندوز تاوول**: د کلیو او بانډو ماشومان د خپلو زیاتو

لو بو ترخنګ دغرندو ز لو به هم په ډېره مېنه سره کوي ، دغرندو ز دلوبې له پاره دیوې لوېشتې یا یوه ګروزي په اندازه لښته چې دلاس دخچنې (کچنې ، کوچنې ) ګوتې په شان وي را اخلی ، د منځ په برخه کښې دچوړګی یا چاکو په واسطه ژغوری کوي ، له دې وروسته د نیم ګز یا دریو چارکو په اندازه دسنیوو (ا نځیو ) کلکه او کلیچه نرۍ (مزی) ورته را اخلی ، دالرګی دمنځ په ژغور ګی کې په دې کلیچه نرۍ او مزي سره کلک ګنډه کوي ، کله چې لرګی کلک ګنډه کړي دسنی دمزي دواړه سرونه په لاسو کې نیسی او دا لرګی په کې تاووي چې دم پیدا کړي، دسنی د دم د پیدا کولو نه وروسته دواړه لاسونه چې دمز ي سرونه یې په کې نیو لی و ي ، د پیدا لورته غزوي ، په دغو غزیدو سره دالرګی دڅرخ په شان تاویږي او دغرغر آواز ترې په رته کیږي ، دلاسو په غزو لو سره لرګی دژرندې دڅرخ په شان تاویږي ، دتاویدو په وخت کې لکه چې وویل شول دغر غر آواز کوي ، له دې اسله دالو به دغرند و ز په نوم یادوي ، لرګی ته یې هم غرندوز وایی .

**سر په ډ ی او ښتل** : دسنګاو په کلیوا او با نډ و کې کله چې دغنمو اوجوارو درمنډونه واخستل شی او په درمنډو کې بوز( بوس) او تمتې(ترانتې) پاتې شی ، ، واړه هلکا ن له مشرا نو څخه پټ کله کله ورځی او په دې هوارو بو زو او تمتو کې سر په ډ ی او ړي دسر په ډی او ښتلو لو به دوی داسې کوي چې سر اولا سو نه په مځکه کیږدي او پښې مخ پورته هوا ته جګې کړ ي د مخ خوا ته ځانونه اړوي ، دالو به څوځو تنه سره کوي ـ دڅ رمنډه له یوه سر نه تر بله سره پور ې یې په ډېره تیزۍ سره کوی هرڅوک چې له یوه سر نه

بل سرته د نورونه پهدې اوښتو اوړا اوښتو کې زر ورسیږي هغه
تکړه بولي ، برسېره پردې دشوقالو اوړشکې په پټېو پاشود یار ه
کړي ښتی کې چې لوتی يېماتې شوې وي هلکان هم دالو بهدخوشالی
له پاره سره کوي او ډېره پهزړه پورې يې بولي. دمرپهډي ا و ښتل
دوڼې په ښاخو پاندې هم ترسره کوي ؛ پهلاسو سره دوڼې ښاخ کلک
نیسي دواړې پښې ور پورته ( وړ پورته ) کوي دلاسوله منځه پښې
راوباسي سرېې سخ ښکته شي او رااوړي چې دې حالت ته سرپه ډې
رااوښتل وايي ... (ددې لوبې بلهښه دمخه راغلې ده )

**یادونه:** دلوبو او مستېو په وخت کې هلکان خپل پټکي
هادر ، څپلې او کله کله واسکټونه لهځان نه لرې کوي او پوځای
کې يې سره دلي کوي ، دلوبې لهکولو وروسته هریوتن خپل شی
اوکالي را اخلي او پهځان کوي يې .



# هغه اصطلاحگاني چې د لو بو په وخت کې استعمالیږي

**میران :**

مفرد شکل یې میر (۱) دی چې مشر او د سرې تهویل کیږي په غلوزو (شاتومچی) کې چې میر نه وي (رام) اچوي او لهخولي

---

(۱) زانې هم میرلري، میر په سر کې وي او نورې زانې کتار کتار پسې ځي هلکان یې چې په هوا کې وگوري داسې په لوړ وغږ وورته وایي: «میره میره! گډېوډ یې که.» ، «آمیره! آمیره! ته یې گډېوډې که»

تمبکي نه وزي. په هلکانو کې چې لوبې سره کوي هم ميرمشر ته وايي، هلکان چې لوبې کوي نو اول په خپل منځ کې د دووسيالو ډلو د جوړ يدوله پاره دخپل منځ نه دوه تنه مشران انتخابوي اووايي تاسې زموز ميران يئ، ميران د هلکانو په منځ کې دا صفتونه لري:

۱ - په لوبه د نورو نه ښه پوهيږي او زيات مهارت په کې لري.

۲ - وجود به يې قوي او غښتلي وي د توان خاوندان به هم وي.

۳ - نرمه ژبه لري ملګر يو او سيالي ډلې سره به په خندې چلند کوي.

٤ - ملګري به د هغو هره خبره مني او په ډاګ به يې نه اچوي.

۵ - په مير خپله ډله را ټوليږي.

**جوړه:**

کله چې د يوې لوبې دا جرا کولو څخه د مخه مير اند لوبغاړ يو له منځ نه معلوم شي، نو نور لوبغاړي په خپل منځ کې دوه دوه تنه سره يوې لرې فاصلې ته ځي، هلته په پټه دلاس ګوتې معلوموي او بيرته ميرانو ته راځي، يو تن ميرته وايي کومه ګوته په دې دوو ګوتو کې نسي (نيسې)، ميران يواو بل ته مخ سره اړوي يو وايي دا د منځ ګوته زما، دې وخت کې د دغو دوو تنو نه هر تن چې د منځ ګوته وي يعنې په ځان يې دا نوم ايښې وي د هغه کيږي، له دې نه وروسته نوردوه چې سره جوړه شي او ميرانو ته راشي په يوه د تو ندې (بحر، سين) نوم ايږدي، په بل وچه يعنې ځمکه، مير ته در اتلو سره وايي تو ندغوا ړې که وچه (۱) (غرض

(۱) وچې ته غرض دادی چې ودې شودله، دازه يم او په پچه در غلم يعنی ما اوز ما جوړه شوی ملګري ګوتې په پچه نيولې وي، دار نګه که يو هلک په ځان باندې تونده او بل په ځان باند وچه نوم ايږدي.

ترې وچه خاوره او پټې دي) میرته وايي در غلم په پچه، په دې ډول سره ټول هلکان میران ځانته په پچه سره سري، دلو بې په وخت کې به جوړه شوي هلکان او به دخپل ځان په گټه پر سخ بیا يې نوځکه جوړه ورته وايي چې پچه شوی ساگری به له خپل سلگري سره لو به کوي .

## مرل :

مرل جلا کولو او بیلو لو ته ویل کیږي لکه ورغوسی اووري چې سره گډ وي او شپون يې ومري، سیرلی یوې خوا ته اووري بلې خوا ته کړي ، په لو به کې جوړه شوي کسان چې بیلې بیلې ډلې شي مرل ورته وايي دا په دې ډول چې جوړه شوي دوه تنه میرانو ته راځي او مخامخ ورته دریږي. میران سره وايي یوونیسه یومیر یو په کې نیسي دا یو یوې خوا ته بل تن بلې خوا ته دریږي په دې ډول سره ټول جوړه شوی هلکان ورته راځي نیم یوې خوا ته او نیم بلې خوا ته کیږي او ډلې معلو میږي چې مرل ورته وايي .

## شوت :

دوارد نیولو له پاره میران شوت سره وهي ، هر یو چې پړ شي هغه دلو مړي ځل وار نیولو حق نه لري بلکې بر شوی وار گټي او دهغه ډله به لو به پیل کوي . شوت دښې لاس ددریو گوتو : منځ ، شهادت او گاټې (غټې) گوتې په واسطه سره وهل کیږي او بیل بیل نومونه لري چې یوه په بله زوره وره وي د مثال په ډول یومیر غټه (گاټه) وباسی بل میر دمنځ او شهادت گوته وباسي او بل

میر دمنځ او شهادت ګوتی خلاصی نیسی په دې حالت کې دګاتی ګوتې ایستو نکی بر او بر یالی دی، که یو میر د شهادت ګوته وباسی او بل میر دمنځ او شهادت ګو تې دواړې و باسی او خلا صی یې ونیسی نو اد شهادت ګوته دمنځ او شهادت ګوتې په خلاصو الی سره پر یکړې داځکه چې دادې بیتی (قیچی) مثال لري او د شهادت ګوته پرې کوي د شوت وهلو په دې ډول کې دمنځ او شهادت ګو توا یستو نکی بر یالی دی، که یو میر د شهادت ګوته و باسی او بل ګاته (غټه، بټه) و باسی په دې حالت کې د شهادت ګوتې ایستو نکی بردی ، دا ځکه شهادت ګوته د لته د سیخ مثال لري او غټه ګوته بڼه کوي .

**تو ندوچ :**

دوارد معلو مو لو لپاره میران یوه کوچنۍ تیږه یا کو دی (کودړی) را اخلی په یوه مخ باندې یې دخولې لاړې اچوي او لوندوي یې بل مخ یې وچ پر یږدي، یو تن وچ لوری انتخا بوي بل ته لوند طرف پاتې کیږي مخ پو رته هوا ته یې غورځوي، ځکې په مځ چې راولو یږي که لوند طرف یې پورته خوا ته وه نووار دلومړي ځل د پاره د هغه میر د ډلې په برخه کیږي چې لو نـد طرف یې رسیدلی دی، په ځینو ځایو کی وړته وچه او لانده هم وا یې .



زړه مې ماشوم شـو راته ژاړي
لمانه غواړي د پردې باغچې ګلونه

# د ماشومانو فولکلور ته یو نظر

واړه (کوچني، کمکي) ماشومان د لویانو په شان ډېره بډایه فولکلوریکه شتمني لري، د هر قام او ټولنې کوچنیان(۱) ځانته ځانګړی او خاص فولکلور لري، جوته ده چې په کمکیو هلکانو

(۱) وګورئ د زېړي کالنۍ، ۱۳۵۷ کال، د لیکوال مقاله.

باندې خوږې کلمې، وړې وړې کيسې (ټکلونه، متلونه، داستانونه)
سندرې (لنډۍ) او شعري ټوټې زيات اثر کوي. دووه کېدود
فولکلوري ادب پېژندنې په باره کې دا خبره د يادونې وړ ده چې
دا ادب څومره دوى جوړ کړى او څومره د لويانو څخه ور ته
پاتې دى، په هر صورت د ماشومانو د ادب پېژندونکو له نظر يو
څخه معلومېږي چې هر يوه لوى (غټ، ستر) په کوچنيتوب کې
دا فولکلوري پانګه د خپلو امځوليو (همزوليو) سره په مينه ټيره
ټېره په في البديهه ډول ويلې ده ... د کليوالو بانډو ماشومان
د ښارونو د هلکانو په څېر د خپلو مستيو، لوبو او ساعتيريو له پاره
موډرن وسايل نه لري د کليو ماشومان کله چې د ځان د خوشالۍ
له پاره ډلويانو نه پټ په يوه خوندي ځاى کې په زياته خوښۍ
سره غونډ شي، داسې شور، زوږ او غوږ پش سره جوړ کړي چې
په دوو غوږو وڅه نه اورېدل کېږي، دوى يو او بل ته غوږ نه سره
نيسي، ډول ډول لوبې او سندرې سره کوى او ځانونه پرې خوشال
او خوښ ساتي، په دې الوو او شور بګت کې يو هلك نورو ته وايي:
شور مه کوئ، غوږ و نيسئ که خوښه مو وي يا به يو تن چې ښه
ټکلونه (متلونه) يې زده وى مور ته ټکلونه وا چوي که چا ښه
ټکلونه نه وي زده نو به په خپل منځ کې شيرى او لغت (شعر جنګى)
سره وکړو او سندرې به وبولو، ټول هلکان دده په خبره غلي
کېږي، چا چې ټکلونه زده وي هغو ته وايي غوږونيسئ زه به يې
درته وا چوم نور ماشومان غوږ ورته نيسي. هغه چې کوم ټکلونه
زده وي ورته اچوي يې، د ټکلونو نه څټ ته په خپل منځ کې ډول
ډول شيرى چې دوى زده وي هغه هم سره کوي. هغه شعري چې دوى

خپله زده وي سره تماس کړي بيادلو يانو شېرې چې دوی ترې اوريدلي وي اودلو يانو په شان يې زده وي په خپل منځ کې په لوړو غږونو سره چې دداڼرې اوتلېر دډوډۍد پېښې په شان گرد چاپېره په گو ښو ناست وي سره کوي، شيرگر (شاعر) يې په منځ کې دريږی او دخپلو لو يانو نه زده کړې شېرې ور ته کوي او ناست سلگري يې له ده وروسته په لوړو غږونو سره په ډېر خوند وايي . کوسو سوادو ته چې په دې ډورته يادونه کې سوې اشاره وکړه په دې ټولو برخو باندې به يسې د منگلو د يو ې سيمې (زموږ د کلی) دماشومانو د فولکلوري شتمنۍ له مخې په وروسته ډول سره څه رڼا وا چول شي .

## الف- کيسې او نکلونه :

نکلونه او متلې دولسي ادب ډېره زياته غوره برخه ده چې په ليکلی ادب اووگړ نی ادب کې ځانته مقام او ارزښت لري ، له نکلونو سره ماشومان ترلو يانو زيا ته مينه لري په ماشو ما نو باندې دد يوانو، پېريانو، ښاپېريو، جادوگرو، ملنگانو، زرگرانو بوډ يو (سپين سريو) اود ووعاشقانو اومينو نو سو نه ډېر ښه لگېږي.

دا شان دوی ته دتورې، کنگل (ډال) ،غېږې، آس، ليندۍ او غشي خبرې ډېر زيات خوند ور کوي ، که څه هم په ولسي اوروياتی نکلونو کې دو سره حقيقت وجود نه لري او مبالغه په کې زياته وي.

په هر صورت ماشومان له نکلونو سره زيا ته مينه لري کله چې په يوه گوښې ځای اوويجره کې سره غونډشي که د کلي ماشومان وي او که د يوه کهول او کورنی هلکان وي د نورو زيا تو ساعتېر يو ترڅنگ په نکلونو باندې هم خپله خوشالې يو په دوه زياتوي ،داوروسته

ځو لنډ متلو نه بېد مثال په ډول د دوی له خولي څخه واورو . خو د متلو له اچولو نه دمخه داټکی هم د پاملرنې وړدی چې دمتل په کلمه ځان پوه کړو :

په منګلو کې نکل، بدلې او داستان ته متل وايي دمثال په ډول لکه عارف چې احمد ته ووايي نن شپه مو ږ ته دعباس او ګل بشرې متل واچوه ، داچې خلاص شي بيا دمير بوشی ، مير وګی ، بـلوګی او آدمخان بدله پسې واچوه چې شپه پرې رڼه (رڼا) کړو .

پر دې برسېره ضرب المثل ، امثال اوحکم ته هم متل وايي .

متلو نه (ضرب المثلونه) د پښتو ژبې د غني ادب پـه ډېره او ګوره ورشو کې ډېره غوره برخه او درنده پانګه ده چې څېړ نه يې له هره پلوه ضروري ده ، داځکه د پښتنو په کليوا او بانډو کې د متلونو داسې زېرمې اوزخيرې پرتې دي چې تراوسه يې له مخ نه ايرې او خاورې ايسته شوې نه دي ، که په دې پسې لټه وشي امکان شته چې د پښتو ژبې د ډېرې فولکلوري شتمنې غېږې ته به ددې ځانګې (متلونو) ډېر په زړه پورې ګلونه ور په برخه شي .

متلو نه چې په حقيقت کې د کليوا او بانډو دو اس ترمنځ سينه په سينه د پلارنه زوی ته ، له يوه نسل نه بل نسل ته پاتې دي هغه لنډې ما نا لرونکې جملې دي چې د نظم او نثر په بڼه وجود لري اودوی د ژو ندانه بڼه ، کړه وړه او راشه د رشه ، پر بکړې او يـو بل سره مينه او بسپنه ښه ترې جوتېږي دمثال له پاره د اځو متلو نه چې ماد خپل کلی د يو ځوان له خولې را ټول کړي و ګو ری . چې څومره په زړه پورې دي ، البته په دې برخه کې بـه موږ د

خپلې سیمې د دغې فولکلوري مرغلرې خوندي کولو ته په زړه دې وخت
کې پام واړوو :

۱- سپېره (سپېره) که ږنګره (خواره، بېه) ده، دوري رودل یې بایده دي.

۲- ګور که زندون (زندان) دی، مړي ور ناکوم (ناکام) دی.

۳- یور (یار) سره یوري (یاري) که، په ایبو (عیبو) یې غرځ (غرض) مه لره.

٤- توره که لنډه وي، باید کدم پسې وا خلی.

۵- شپه که تیاره دو (ده)، خور سور مالومه (معلومه) دو.

٦- د ژمي په توده مه وسپېره، د تر بره په خوږه مه وسېږه

۷- ورور درسته ورځ غلتوه، که نه غلتېږي اك (حق) یې مالوم (معلوم) دی.

۸- غله ته مه وایه چې غله، یې غله نه خپل ځون (ځان) ماته.

۹- توره غوو (غوا) چې زېږه ښتی، زېږه ړنده کې چې توره نه ښتي.



# دلیوه او گیدړې متل

**وایه اغوږ و نیسی ځ :**

غوږ مو دی :

ښه ده : یا یی (وا یی) چې په خوو (۱) وختو کې ټول شیانچې خدای پیدا کړي او دده پیدا ښت وو ، هغه ټول گو یان وو او خبرې یې کولې . دورځو نه یوه ورځ یوه وړې لېوه چې سترگې یې سرې وې ، د یوې پرښې او غټې لوټې په کوتی اوتو ی (تاق) کې یوه خواره وړې گیدو (گیدړه) ولیده او هغې ته یې په یوه پړ اك ځان ور ور ساوه ، گیدړې چې ولید ډېره زیاته ترې وډاره شوه لېوه هغې ته په زوره سره داسې وویل را کوزه شه چې خـو له دـ

(۱) ځنېو، لرغونی، مخکې، پخوا ۰

رنې (دربانډې) مالګې کم، ګیدړې له ډاره خوله وینځه ونیوله او د ځان د خلاصون له پاره یې داسې ورته وویل: لېوه وروره:
«په ما به خوله مالګې کې خوسا داسې سترګې خپل پلار ته ورته دي هغه به چې د دې کړانګ (ګړنګ) او ګړ چ څنډې ته راغی دوه واړې به یې ترشاه منډه کړه او بیا به یې د کړانګ څنډې ته رامنډې کړه او به دریډ په دریم وار به یې ترشټ منډه کړه بېرته به یې چې په مخ په زور سره رامنډه کړل او تر دې کړانګ به کوز چات شی او بیا به ما ته راته ...»
لېوه چې د ګیدړو (ګیدړې) دا خبرې او د خپل پلار د سرو سترګو صفت واورېد ځان ته یې و کتل، بې له درنګه یې ترشاه او مخ ته منډې وو هلې، په دریم ځل یې له دې کړانګ نه کوز ټوپ وواهه او ټوټې ټوټې شی، غوښې یې په تېرو تېږو او لوټو کې پاتې شوې او ګیدړې په دې چالاکۍ سره ځان ترې خلاص کې (یاره ډېر خوند یې و کی)



# دسپږي اوو ږدی (و رگي) متل

# وايه ! غوږو نيسى ء :

يا يي چي په خوو وختو کی، سپږي اوو ږدي يوځای ژوندسره کاوه دوی دوا ږو زامن لرل. وخت په ورو تېر يږي، خبره زر کيږي يوه ورځ چې ه اوو ږدي سره ناستې وې، په يوې اوبلى يې خپل سر و نه سره غوښت او پاکول يې. په دې وخت کې ورږې سپږې ته وويل که ته سږه شې زه به ستا زای (زوی) ښه ساتم او که زه مړه شم ته به زما زای (زوی) ښه ساتې، سپږې وويل خيردې وې موږ تاسې دې خدای نه وژنی، څو دور ږې دا خبره يې په زړه ښه ونه لگيده، ددغه قول نه وروسته سپږې دور ږې د نيت د معلوم ولو له پاره يوه ورځ ځان په ټگی کړ، چې مړه يم ځان يې نه ښوروله ورږې چې سپږه وليده او په پوه شوه

چې څه دم دوك (۱) په کې نه دی پاتې نوی یوې خواته واچوله
،دډوډۍ وخت راغی ورېږې خپل زوی ته داوړو (اټا سو، غنمو اوړو)
ځکې پخه کړه دسپږې زوی ته یې داوربشو ځکې پخه کړه. سپږې
چې ځان ورته پټ کړی و او سره پرته وه راجګه شوه و رېږې
ته یې وویل: خورې! زه او ته خو په ګډه کور کې سره اوسیدلو هغه
بله ورځ مو قول سره وکړی چې که زه سره شم ته به زما زوی ښه
ساتې، که ته سره شې زه به ستا زوی ښه ساتم، آفرین (آفرین) زما زوی
دې ډېر ښه وساته هغه ته دې وربشینه پخه کړه او خپل زوی ته دغنمو.

ورېږې ډېره وشرمېده خود ځان دسپینوالی دپاره یې ورته وویل:
ستا ته معلومه ولې چې ته سره یې او که ژوندۍ، سپږې (۲) ورته
وویل: ښه دې معلومه کړه د کور نه دې ایسته وغورځولم او
زوی ته مې دې هم وربشینه پخه کړه زما له مرګ نه دې هم څه حیا ونه
کړه ورېږې ورته وویل داځل غلطه شوم بیا داسې نه کوم.

وخت په ورو تیرېدی خبره زړه کېدې یوه ورځ سپږه په رښتیا مړه
نا روغه شوه او له دې نا روغۍ نه مړه شوه. ورېږې داځل پوه شوه چې سپږه
په رښتیا سره مړه شوه نو دې ظالمې خپل زوی ته غوړه او خوږه ډوډۍ
ورکوله، دسپږې زوی ته به یې وچه اوسپیره وربشینه ورکوله.
سپږې او ورېږې یوه وزه (بزه) درلوده چې په هغې پسې به یې هم دسپږې
له مرګ نه وروسته دهغې زوی څره ته لیږلو دسپږې زوی ډېر خوار
شو یوه ورځ یې چې وزه څره ته بوتله ډېر خپه ناست و، (خوو ختو کې
چې هرڅه ګویا نو و او خبرې یې کولې نو دوزې «بزې» دسپږې په

---

(۱) سېلوې او حرکت (۲) سپږه کوناوه وه زوی یې یتیم و.

زوی باندې فکر شو ) ور ته وی ویل: چې ولې غلی او خپه یې ؟ د سپږې زوی و زې ته وویل: ورېږې هره ورځ وچه ور بشینه سپږه ډوډۍ راکوی له ستو نی نه‌می نه تیریږی ، وګوره داسې یې خړ او سپیره وچ کړ م ، وزی ور ته وویل رښتیا ده ستا سره هغه ظلم کوي ، خپل زوی ته‌ښه‌خوا ړه ا و خوا ږه‌شیان ور کوي ته‌خپه کیږه مه . له دی وروسته هغه ور بشینه ډوډۍ له‌ځان سره په لا س کی غره ته راوړه مه یی خوره ، زما ښی ښکر پورته کړه‌په‌دې کې‌وریجې او غوښې دي هغه وخوره ، په کیڼ ښکر کې می ممیز (ممیز) دي هغه‌هم پورته که‌وې‌ې خوره ، هره ورځ چې راځی او ماپوولو ته را ولې دابه خورې اوچا ته به حال نه‌وایې ، د سپږې په‌زوی باندې خدای مهربانه شی ، ورځ یې په‌ورځو کې جوړه‌شوه ، رنګ یې په لږ وخت کې سور او سپین شو غوښه یې په‌وجود کې پیدا شوه ، دوریې د زوی رنګ له‌ده نه خړ و ، ورېږې ډیره په چرت کې وه چې دا څه‌چل دی زه‌دې سپیره ته سپیره‌ور بشینه ورکوم داسې ورسره ښه د ی ، خپل زوی ته‌داو ړوډو ډۍ او غوښې ورکوم رنګ یې له‌ده نه‌خړ دی. خدا یه څه چل دی ؟ په‌دې خوارکی یتیم باندې یې دا رنګ ژوندهم نه پیروز کیده په‌هغه‌پسې یی غره‌ته‌ځری اوغمازسم کړچې دده‌حال ورته‌معلوم کړی . یوه‌ورځ یې پښه (پوشو ، بلی) پسې پټه ترخت ولیږ له‌اوورته وی ویل هغه وګوره‌چې څه‌کوی ، پښه‌چې پسې لاړه ، یوه پټ ځای کې و رته کیناسته ، د ی چې غر ه ته ورسید د وزې (دوی به وزګوړې بلله ) ښی ښکر یې پو ر ته کی وریجې او غوښی یې ترې وخوړې ، کیڼ ښکر یی ترې‌پور ته کی اوممیز یې ترې وخوړل ، پښې چې و لید وی ویل : میو ، میو زه به

وهیام چې ور یجې اوغوښې خوري (پخواهرڅه گویان وو)، دسپړی زوی ورته وویل راځه اوتااوس ملگری شوو ته به یې هم راسره یوځای وخورې حالا، مه وایه پښې لهځان سره و ویل چې ور به شم وریجې غوښې به ترې وخورم او بیا به وروړې ته حال و وایم ، پښه چې دسپړي زوی تهورورسیده څه خوا به یې ور کړه خوله یې خلاصه کړه ژبه یې په نیما یې کې غوټه په پرې کړه او په بدحال سره وروړې ته راغله، وروړې ورته وویل څه یې کول؟

دې چې خبرې دژبې دغوڅیدواو پریکیدو له امله نه شوې کولای خو له یې په خاورو ومږله او وروړې لهدې نه داپوه شوه چې خاورې خورې، نو یې بله ورځ خپل چرگ پسې پټ و لیږه هغه ته یې وو یل چې ته به سم حال راته وایې، پښې خو غلطه کړم چرگ چې غلی غلی پټ پسې ولاړ، گوري چې په غره کې دسپړي زوی د وزې ښکرپو رته کې وریجې او غوښې یې ترې و خوړ لې، کیڼ ښکر یې چې پو رته کې ممو ز (وڅکی، ممیز) یې ترې وخوړل، ده کو، کو کو، کوو و یل : ښه پوه شوم چې ته په غره کې څه شی خورې دسپړي زوی ورته وویل راځه ته زما ملگری شوې تا ته به یې هم ډ ر کوم، چرگ ورروان شی له ځان سره یې وویل وریجې غوښې به و خورم حال به ور بې تهوو ایم چې ورغی دسپړ ي زوی څه وریجې ورکړې خوله یې چې غټه کړه ژبه یې په بیخ کې ترې پرې کړه چرگ چې بېر ته راغی وروړې ورته وویل حال وایه څه دې دلیدل دچرگ چې ژبه لنډه وه په سخکه به یې خوله (مښو که) و لگوله او څه یې نه شوه و یلای ور وړې وو یل چې خاورې را ته ښیی او په حال خبره نه شوه.

داغشی یې چې هغه خای و نه لګید نو لاړه یو ه زړه بڼۍ (بوډۍ)
یې پیدا کړه هغې ته یې د خپل زوی او سپږې د زوی حال وو ایه
زړه بڼۍ یې کورته را وسته بیا یې سره کړه بڼۍ ورته وویل زه به یې درک
ولګوم غره ته پسې لاړه ګوري چې د سپږې زوی دو زې له ښې
ښکرنه ور یجې غوښې او کینې ښکرنه محو ز خو ري په منډه بیر ته
ورېږي ته را غله ور یې چې داولیده ورته وې ویل څه دې لیدل
بڼۍ د سپږې د زوی د خورا ک حال ورته ووایه و رډې ورته وویل
څه وکم په دې وزه مې د ښښتن (مېږه) زړه نه کېږي ، بڼۍ
ورېږې ته وویل ، خووچ ذري پوستی (چېټی ډوډۍ) ترسلاتا وکړه
مېږه دې چې راشی هغې خوا دغې خواته وغږیږه د ډوډۍ خرا پا به
ولاړه شی دی به و وایی څه چل دی؟ ته ورته ووایه پښتی مې
ماتې دې داوزګوږې چې راته حلاله نه کړې او د هغې وژن (پوستکی)
چې وانه غوندم سرم به دې هنراو چل سره به د سپږې د زوی داخوړه
روزي تمامه شی ستا په زوی کې به بېرته وینه راوګرزي او هغه
سپږه به په خوارو خوارشی، ورېږې د بڼۍ (بوډۍ) خبره و منله سپږه یې
چې راغی د ښښتیو خراپا یې وایسته او ورته وی ویل ذاروغه
یم دادوز ګوږې وژن چې راوله چوي داساعت به مړه شم سپږه هې
په رنځورتیا د پرخپه شو او بې له درنګ نه یې وزګوږې راونیوا له
حلاله یې کړه او وژن یې ورېږې ته وروا چوله ، هغه خو په ظاهره ر-
نځوره وه پټ په زړه کې یې خندل چې د سپږې له زوی نه مې د خوړو
چینه بنده کړه که څه هم دا سال زموږ وخو خواسې په یخه شوه سا به
خپل زوی ته هر څه ور کول نه پرې لګیده ده ته وزه سبب شوې وه
رنګ یې سور سپین و اوس به ورسره ګورم هو ساعت به یې وژن اغوستی

وې او که نه له ځان نه یې ایسته وشړله او که روغه شوه. د سپږې
زوی ته بیا وچه سپیره روټه په برخه شو. دوی هلې پاتې شوه موږ د لې.
(ناست ملګري په خندا ورته وایي یاره! مرګی دې ورک شه د برخوند
یې وکی، خو دې سپږې په زوی موږه بد شی.)



# دورور اوخور متل

يايي چې په خو و (لرغونو ، څنګلنو) وختو کې ورور اوخور يو ځای ژوند سره کاوه ، ددې هلک خور شيخۍ (بلا) وه ، د غې شيخۍ په دخپل ورور آسان خوړل ، دورځو نه يوه ورځ آسان خلاص شوه . هغه په اسانو پسې وګرزيده ، يوه شوه چې اسان نشته نو بې خپل ورور ته دورځې وويل : زه به نن شپه خوله په څه شي تو که کم ، شيخۍ چې د غو بنو په خوراک عادت شوې وه نو به پسې ليونۍ

شوه چې کله به شپه وار سیږي، هلک یوه شو چې خور خوسې شیخی د ه
آ سان يې تول وخوړل ، نن شپه سې خوري نوځه چې ترې لا ړ شم
هغې ته يې پروېځی ورکړ چې ما ته او به راوړ ه تږ ی یم ه شیخی
وروړته په پروېځی کې او به راوړې هغه نه واوړل کیدی وخت په
تیرشي ، هلک دوې خپلې کړې اودوې يې پردی کړې په منډه منډه ه
پسې لاړ چې بېګا ه شو خور هې کو تخې (څپری) ته بې له او بو را غله ګوري چې
وروړ يې نشته ، يوې او بلې خوا ته يې سخ واړوه خو هغه يې پیدا
نه کړ ، یوه شوه چې زسا له دا ره تښتیدلی دی ، داهم چې د غو شې
دخوراک له پا ره لیو نی شوې وه په وروړ پسې روانه شو ه ، هغه
خوشیخی وه ستر ګې يې چې لا ندې با ندې کولې په و ر و ر پسې
ورسیده ، وروړ يې چې له لرې ولید ه نودده سره په جوب کې
یوه ستن وه هغه يې د دې سخ ته واچوله ، داستن چې په مځکه ولویده
دستنو لوی غر ترې جوړ شو ، شیخی دستنو په دغه غره با ندې په ډیر
تکلیف سره وختله او تیره شوه ، خو تول سرت (صورت) يې غو څ
او زخمي شوی و ، وروړته چې و ر نږدې شوه دو ر و ر په جیب
کې يې دسا بون (صابون) یوه چکی وه ، هغه يې چې په مځکې ور ته
واچوله ، دسو بینه لوی غر ترې جوړ شو . شیخی دسا بون په د ې
غره چې ډیر جګ وه وختهٔ ، خو دستنو پیا ورو نه به يې چې دسا بو ن
سره ولګیده ډیر سخت سوای به هې کاوه . په ډیر تکلیف سره پرې
تیره شو ه ، دسا بون دغره نه چې تیره شوه وروړ يې بیا په یوه کدم
(ګام) کې را لا ندې کړ، وروړ يې یوه شو چې را پسې را ورسیده نو هغه
خپل جیبونه وکتل دسا لګې یوه زره هې پیدا کړ ه هغه يې و ر ته
واچوله او لوی غر ترې جوړ شو .

شیخی دسالګي په غره چې پورته ختله پیاو رونه (پرهارونه) یې بیاورسره له سرنه تازه اوغوخ شول ، ډیره په عذاب سره پرې تیره شوه ، ددې په هرزخم باندې مالګه ولګیده او ډیره یې په تکلیف کړه، له دې غره نه چې واوښته ، وروریې بیا په یوه کدم کې رالاندې کړ ، وروریې چې د ډاره بله چاره نه لیده نو یې په جیبو کې ګوتې ووهلې دسخ وینه ( هینداره) یې پیدا کړه ، د اوینه (هینداره) یې دخورمخې ته چې شیخی وه واچوله اوله دې هنداري (وینې) نه لوی غر جوړشو .

دوینې ( هینداري ) غر ډیر ښوی و ، شیخی بهچې پرې وخته بیرته به راوښویده او بیا به پرې بېر ته ختله، په دې غره کې په شیخی با ندې ډیر وخت تیر شی خو په ډیر زحمت سره په وخته شپه په دواړو سبا شوه هلک لوی ځنګل ته ورسید په لوی ځنګل کې یې هغې ونې ته ځان ورساوه چې د ه ګیري بګیري دد ې ونې لاندې تړلی وو ((ګیري بګیري دوه دیوان وو چې له دې هلک سره په ځنګله کې دښکارپه وخت کې ملګري وو او هغه یې د مرګ نه بچ کړی وو ، ګیري بګیري هلک ته ویلې وو چې سختی در باندې درشي نو به داستن ، دسا بون چکی ،و ینه (هینداره، اینه) اومالګه خپله سخه کې اچوې په د غوشیانو به مرسته درسره وشی او سو ړ ته به ځان را ور سو ې.)) ، ګیري بګیري چې هلک ولید نو یې ورته وویل څه پیښه ده ؟ هلک ټو له کیسه ورته وکړه ، ګیري بګیري یې خلاص کړه اودې پوړ ته ونې ته وخوت ، په دې وخت کی شیخی را ورسیده هلک یې په ونه کې ولید ، ورته وې ویل :

وروره راکوز شه ، هلک چې ځان خبرې ته جوړ کړ ، په دی

شپه کې ګيري بګيري پرې راپورته شول‌شيخي يې‌ووهله له دې
ځای نه يې هلې وه غورځوله . شيخي چې‌سخته و لګيده نو بې
خپل وروړته په‌ژړاغونی‌اواز وويل :

وروره! ګيري بګيري څه کی؟

ورور يې وويل : خورې دوی له تا نه څه پوښته کی .
خور يې وويل : کېښه‌کی وه د ې يې کی .
ورور يې وويل : خورې دوی وايی اس دې په‌څو پښودی؟
خور يې وويل : اس سی په‌څلورودی .
دورور په‌سخکې ګيري بګيري ورته وويل : نه‌نه په څلو ر و
نه‌دی په‌دريودی .
شيخي وويل : نه نه په‌څلورو دی .
ګيرې بګيري وويل : نه‌نه په‌دريو نه‌دی په‌دوودی .
شيخي وويل : نه نه په‌څلورودی .
ګيري بګيري وويل : نه نه په‌دوو نه‌دی په يوه‌دی .
شيخي وويل : نه‌نه په څلورو دی .
ګيري بګيري وويل : نه‌نه په يوه‌نه‌دی په‌سينه‌دی .
شيخي وويل : نه‌نه په‌څلورو دی .
ګيري بګيري وويل: نه‌نه په يوه نه‌دی په‌سينه دی .
شيخي وويل : نه‌نه په‌څلور و دی (يعنی روغ رمټ دی ، آس
چا نه‌دی خوړلی )
ګيري بګيري وويل :آس نشته ، نو بې خولې‌ددې‌دخوراک
له‌پاره خلاصې کړې .
شيخي په‌آخرکې ورته وويل : وروره ! ګيري‌بګيري څه کی ؟
ورور يې‌وويل : ګيري‌بګيري دوړې (داړې) ستا په غوښو
کی پښه کی .
**ياددونه**: داستل ساشوما نو له‌خپلو لوپانو(خوېندو،ورونو) نه
اوريدلی ، خوهغه‌شان يې نه شی سره‌اچولی .

# دنیکی بدی متل (نکل)

وایه !

ښه ده، غوږ ونیسی :

دوختونه یو وخت په څو زمانو کې یوه کونډه وه، ددې کونډې دوه زامن وو یو نیکی او بل بدی نومېده. نیکی تر بدي مشر و ځکه چې یې نوم نیکی و دا مې د نیکو خویو څښتن و ، د بدي چې

څرې (څنګه) نوم بدی و داسې دبد و خویو خاوند و. مور نیکې او بدی په یو ټوټ سره زیږه چې له کلي به یې راټولوله لوی کړل نیکې چې سره خوله ژنکی (ځوان) شو مور ته یې وویل: موري! ته او بدی په کورکې پاتې شئ زه اوس لوی شوی یم، تا موږ په ډیره خوارۍ رالوی کړو اوس به زه خوارۍ پسې لاړ شم که خدای څه په لاس راوستل موږ تاسې به ژوند پرې وکړو، موريې وویل: سه ځه سره خوله ژنی یې خواري نه شې کولای نیکې ورته وویل په کورکې کیناستې به نه دی دعا راته کوه زه به ولاړ شم.

نیکې له کوره په خوارۍ مزدورۍ پسې لاړ ډېر مزل یې وکی، یوه کلي ته ورسید د کلي خلک په جومات کې ناست وو، دی ورغی د خلکو په جامه (جمعیت) کې کیناست او ورته وې وویل: زه مزدورۍ پسې راغلی یم که څوک مزدور نیسي زه مزدوري ورسره کوم، ددې کلي یو شتمن سړی و هغه ډېر بې ګوزارې و، هغه وویل زه مزدور نیسم خو زما مزدوري کول شرطونه لري. که شرطونه پوره نه کړې پېزه (پوزه) غوږ به دې پرې کوم. نیکې ورته وویل ښه ده زه مزدوري درسره کوم، ده له ځان سره وویل چې اسان کار به وي و به یې کړم دومره سخت کار به نه وي چې غوږ او پېزه مې په پرې شي. شتمن وویل چې مزدوري کوې راځه چې کورته ولاړ شو مزدوري او دهغې شرطونه به سره وښیو، لەدې وروسته به ته خپل کار کوې. نیکې او خان کورته سره ولاړل شتمن ورته وویل: دا پورته مځکه و یني دا زما ده ته به هره ورځ پنځه سنه تخم په کې کړې مځکه به کولبه کوې تخم به په کې اچوې او ما له کوې به یې، که پنځه سنه تخم د ونه و یشت بیګا ته چې راغلې پېزه او غوږ به دې پرې کیږي، ما زد یګرخوا ته

چې راځي يووځه (وځوکی، د سړي بار) لرګی به هم د سونګ له پاره د ځان سره راوړي، چرګې او غوايان به هم سهار او مازديګر مړه وي (ماړه کوي)، ډوډۍ (وچ جواري يا تيکله چې د سترخوان کې در ته کېښودل، شی له خندا و به يې نه ساتوې بلکې له منځه به يې خورې او که نه وږی به کښېنې) به له خندا و ځځه نه خورې له منځه نه به يې خورې، نيکی به چرت کې و لوېد، بېرته کور ته له شرمه نشی تللی او بل ځای خواري هم نه پيدا کېده د دوو ترمنځ ګېر شی...

اخر يې شتمن ته وويل په دې شرط مزدوري در سره کوم. شپه تېره شوه سهار يې چرګې او غوايان او نور ماله ماړه کړل ژغ او ماله يې راواخستل غوايان يې ترمخ کړل په پټي کې يې يو من تخم وويشت د کولبه کو او بريد يې پرې وکړ، مځکه وچه او سخته وه هغه کېږه شوې او وتره نه وه تر ماسپښين پورې يې ايله د نيم من تخم مځکه هم کولبه نه کړه څلور نيم منه تخم په ځای ورته پاتې و، يووځه لرګی هم په دې نږدې ځايو کی نه پيدا کېده، خبره زر کېږي وخت، په ورو تېرېږي مازديګر شی نيکی خوار کی ايله يو من تخم په مځکه کی و نه کړلی شو، لرګي ځای په ځای پاتې و هغو ته خو وخت پيدا نه شو، څلور منه تخم يې د غوايانو په شا واچاوه ژغ، سپوره او ماله يې راواخستل کور ته راغی، شتمن ته يې وويل زه ستا مزدوري نه شم کولای له تا سره مې قول کړی وکه غوږ او پېزه مې پرې کوي ستا په مخ کې دي او که نه درنه ځم دا ځکه چې درنه شرمېږم او په زړه کې يې ويل چې دا به ښه سړی وي غوږ او پېزه به مې نه پرېکوي.

شتمن چې د بدې ګوزارې خښتن و، بې له د رنګ نه يې د نيکی غوږ

او پېژه غوځ کړل، نيکی له شرمه شپه په شپه دخپل کور په لوري را روان شو. خوېږاوو ينو ډېر په تکليف کړی ودسهار لمر څرك وچی خپل کور ته راورسيد، موريې چې وليد په چيغو يې پېل وکړ، خپل سريې ټول له غمه وشکولو خو کار له کاره تېر و، نيکی ورته وويل موري اوس څه نه کيږي؟ خپه کېږه مه، بدی د کلی جومات کې و کورته چې راغی د نيکی دا بد حال يې چې وليد نيکی ته يې وويل: ولې وروره! څه درو شول؟ نيکی خپل ټکل ورته وکړ بدي سمدستي ملاوتړله. نيکی او موريې هر څومره چې ورته وويل مه ځه زما دا حال بس دی ته ځان په غم مه ککړ کوه، بدي وويل تر هغه وخته پوري بېرته نه شم را تللی څو مې چې ستاغچ له ښمن څخه نه وي اخستی ...

بدی له کوره ولاړ او مخامخ دخان کلی ته ورغی جومات ته ورننو- تلو په جومات کې راغليو کليوالو خلکوته يې وويل: زه مزدوري کوم، مزدوری پسې راغلی يم کليوالو ورته وويل سو ډير مزدوران نه نيسو زموږ د کلی برسر کې خان دی هغه هره ورځ نوی مزدور نيسي د هغه مزدوري شرط لري څوك چې شرط پوره نه کړي هغه بچی شړي نو ځکه دی په ورځ کې يو مزدور نيسي، څوك چې دده شرط پوره نه کړي غوږاو پېزه يې پرې کوي، خوښه ستا که مزد- وري کوې چې هغه ته دې ورولو که مزدوري نه کوې نو په راغلې مخه ځه بل ځای مزدوري پيدا کړه. بدي ورته وويل له ښمن سره مزدوري کوم بل ځای ډير گرزېدلی يم مزدوري نه پيدا کيږي خدای مهربان دی گوندې دده شرط پوره کړم.

له بدي سره يو کليوال ولاړ هغه يې خان ته ودرولو چې دا ځوان کنکی

غواړي مزدوري وکړي، که ته يې په مزدورۍ نيسې دادی ورسره وبه غږېږي کلیوال ترې ولاړ • بدی او شتمن سره پاتې شول شتمن بدي ته وويل: زما مزد وري شرطو نه لري که هغه پوره نه کړې غوږ او پوزه خودې پرې کېږي، که پوره دې کړل مزد وري به اخلې سرې سترگې به گرزې، بدي وويل: مزدوري وايه څنگه ده؟ بل ځای مزدوري نه پيدا کيږي، خدای لوی دی گوندې ستا مزدوري وکم خو زما هم د مزدورۍ د کولو څه شرط شته • ته چې مزد وري راوښيې اوزه يې اجرا کم بيا به زما د مزدورۍ په عوض کې هغه شرط ته پوره کوې او مزدوري نه در نه اخلم • خان فکر وکی چې زما مزدوري خو ك نه شی کولای نو يې ورته وويل ستا شرط څه دی؟ او زما مزد وري خو داده چې هره ورځ به پنځه منه تخم کرې، دا بره مځکه وينې دا زماده په هغه کې به دا پنځه منه تخم هر سهار تر ماز ديگر پورې کرې پنځه منه تخم چې وکرې بيا به يو وخت لرگي ما ښام له ځان سره کور ته راوړې، سهار او ماښام به چرگې، غوايان او نور مالونه ماړه کوې او اوبه به هم ور کوې، بدي ورته وويل ستا مزدوري خو ښه ده که دا کار مې وکړ زما شرط هم ستا غوندې دی ز ه مزدوري نه اخلم ستا پوزه او غوږ به پرې کوم، خان ورته وويل دا بيخې صحيح او درسته ده.

شپه تېره شوه سهار شو، شتمن ورته وويل زه او مېرمن مو نن چېرې خپلو-انو کره مېلما نه يو ، ماښام راځو ته به چرگې او مالونه ښه ماړه کوې پنځه منه تخم به کرې او يو وخت دسونګ لرگی به هم راوړې دا زموږ کوچنی زوی به هم پاك ساتې • بدي شتمن وويل په سترگو خان او مېرمن يې ولاړل، بدی چې د بدومل و و خپله مزدوري يې داسې ترسره کړه: چرگې يې

تولې حلالې کړې سروڼه يې په ترتو کې کښېنودل او وې ويل وخورئ دانې وخورئ چې مړې شئ. وارهٔ هلکان وږي ول ټوه شو چې بولۍ کوي، نو يې له زانګيې (زانګو) نه را وخست حلال يې کې او نس يې ورپاک کې، بيرته يې دا بې ګناه او کوچنۍ ماشوم چې ګناه يې نه درلود له په زانګو کې کښېښې، د خان پسونه يې حلال کړل سرونه يې په واښو کې کښېنودل، غوښکې يې هم حلال کړل د هغو سرونه يې په (بوسو) کې کښېنودل پنځه منه تخم يې را واخست په مځکه کې يې ژوره کنده ورته وه ايسته هغه يې يو ځای په کې خخ کړ ژغ، ما له اوسپوره يې مات کړل له هغونه يې د سونګ د پاره يوو ځه په پړي کې وتاړه او کرار د کور په وره (دروازه) کې کېناست.

خبره زر کېږي وخت ورو تېرېږي ماښام خان د مېرمنې سره راغی دی خود بدي پېژني او غوږ پړې کولو ته تېړی وچی څګنه يې ماته وو يل ژه مزدوری نه اخلم په عوض کې شرط لرم که مزدوری مې وکړه غوږ به وزه بهدې پرې کم، خبر نه وچې په کور يې څه تکه لوبدلی وه بدی ته يې وو يل څه دی وکړل؟ بدي ورته وويل څه چې تا ويلي وو هغه مې وکړه خان ورته وويل خنګه کوم دي؟ بدي ورته وويل دا يو وځه لرګی ګوره چې په پړي کې مې تړلی او ړي دي شتمن چې وليدل ورته وې ويل دا څه کوی؟ داخو ژغ، ما له اوسپاره دي، بدي وويل د سونګ لرګی دي که زما په مزد وری پښيمانه او خپه يې غوږ او پېزه را نېږدې کړه چې پرې يې کم او زه به په خپله مخه ځم.

خان د پوزې او غوږ پرېکولو له ډاره څه ونه ويل، بدي ته يې وو يل تخم دې وکرلو بدی وويل هو خا نه! تا ويلي وچې پنځه منه تخم زما په پټي کې واچاوه دادی اچولی مې دی خښتن چې ورغی ګوری جوار يې

پنځه واړه سنه يو ځای خخ کړی دی ، څښتن يې وويل دادی څه کړی
دی؟ بدی ورته وويل که پښېما نه يی غوړ او پيزه رانږدې کړه
چې پرې يې کم اوزه به په خپله سخه ځم، خان د پوزې او غوړ
د پرېکولو له ډاره څه ونه ويل ، بدي ته يې وويل تخم دې وکړ-
لو بدی وويل هو! خانه ! تا ويلی وچې پنځه سنه تخم زما په پټه وکی
واچاوه دادی اچولی سی دی څښتن چې ورغی گوري جوار يې پنځه
واړه سنه يو ځای خخ کړ دي ، څښتن وويل دادې څه کړی دی؟ بدي ورته
وو يل که پښېما نه يې غوړ او پيزه رانږدې کړه څښتن له وېرې څه ونه
ويل، خوداخبره يې دوه واري وکړه بدي ته يې سخ وروا ړوه چې غوا-
يان او پسونه دې ساړه کړل بدي وويل هو! دادي ويې گوره څښتن چې
ورته راغی گوري چې غوايان او پسونه ټول ځای په ځای پراته دي
سرونه يې نښته هغه په بوزو (بوسو) او شنوښو واښو کې ا ښښودل شوي دی.
څښتن بدي ته وويل دادې څه کړی دی ؟ بدی وويل تا چې څه
ويلی دی هغسې مې کړی، غوايان سوبو زوته ور خوشي دی ،
خان ورته وويل تباه دې کړم تباشې ، بدی ورته وويل که پښېما نه
يې غوړ او پيزه رانږدی کړه اوزه به درنه په خپله سخه ځم خان
بيا ورته وويل چرگې دې مړې کړې بدی ورته ووې ولی نه
راشه وې گوره څښتن چې ورغی گوری چې چرگې پرتې او سرونه يې
دغلو په تر توکی ننه ايستلي دی ، څښتن يې ورته ووې بد يه ! دادی
څه کړی؟ کا کا! گوره چې په دانواوجوارو سړې دي ، دسال او شتو
څښتن پوه شو چې که دا مزدور نور را سره پاتې شی بيخې به مې له
هر څه خلاص او تباه کړی زوی خو يې د غمه هير شی له وېرې نه يې غوړ
او پيزه ورنږدی کړل ، بدي بې له ډيل نه ترې پرې کړل او ورته

ویل: نیکی څوك لرل او که نه؟ چې تا یې پېژنده او غوږ غوږ کړی وو، بدی دخپل ورور نیکی غچ واخست او بیر ته کوڅه راستون شي، نیکی او سورته یې دا نکل وکی. دوی هلې پاتې شول زه په هوا شوم د لې راغلم (سلګري ورته وایي: یاره ورورکه!
ستا بلا دې په ونو او غنو شي ډېر خوند یې وکی)

## ب - غرنۍ سندرې:

په ننګلو کی واړه هلکان خپلو رسو او غېلو (وزو «بزو» میږو) پسې د دنګو اولوړو غرو سرو ته دپوولو دپاره له کورنو څخه لاړې اړي ځی، کله چې دغرو یوې لوړې څوکې ته ورسېږي سا لونه ورته خپرې دوی سره کېږي، ددوی په سنڅ کی چې د کوسو ډیر ښه او ښایسته غږ ونه وی هغو ته نور ملګري وایی څوغرنی سندرې وبولی، چې زړونه سو په دې دنګو غرو اوشنه ځنګل کې ور سره خلاص او تازه شی، هغه کسان چې ښکلی غږونه لري مخا مخ خوله په خوله سره کېنې دواړو غوږونو ته ګوتې نیسی او په لوړو غږونو دامې ښکلی سندرې (لنډۍ) بولی چې کلك او سخت زړونه ورسره نرمېږي، له یوې خوا د دوی نرې غږونه ته هوا یې چې شپېلی وهی له بلې خوا د دغو غږونو ازانګی او انعکاس د پرښو تر منځ دا فضا زیاته رنګینه کوي دمثال دپاره دا څو غرنی لوړې سندرې (لنډۍ) وګوری:

په جګو غرو کې مې مرګی کې
چې جنازه مې د ښترخانګې وهینه
په جګو غرو دخدای نظر دی
په سرې واورې په لمن زېړ ې ګلو نه

دغره په سرسندره وکه

لکه سره زر که ړنګه بنګه به د رخمه

دغره له سره مې صحیح کړې

پرې به نې نږنم په کیږدی کې ځنډیا ورې

* * *

وور کیه! په لوړشه ننداره کړه

تورو منګلو کلې کوم لوري ته ځینه

نه به منګل هغه منګل شي

نه به مرغې راغه ته بوسی بیر غونه

چې غوږ ور تو پلك پیدا شول

دژوند ونه نه طمعه لنډه که مینه

تورو تو پکو کار یګوره

که وور کی مړه شي خون به ستاپه غاړه شینه

* * *

رباب دې بیا په زنګنو کی

رباب شوکی دی ما به هپره کړې مینه

ستادی رباب تنګ مې ترغوږ شو

کونډول په لاس منګی ته تږې ودرېدمه

دسرینډې وچه لرګییه !

غږدې نری دی پرې کوي دوور کیوزړ ونه

ربابه امات شي دړې وړې

مین په مادی پام په تانې غلتوینه

دادوه تنه چې په لوړغږ سندرې وبولی، زرستري کیږي او

دسندرو د بس کېد وله پاره په ملګرو داسې غږ کوي:

موږ به سند ره د رته وکؤ که مېړني وي ء نوغو رځی وکیء مینه

## ج - شیری

**۱- دلو یا نو شیری:** هغه شیری چی هلکا نو له خپلو مشرا نو څخه زده کړي کتي‌متي يې په هغه شان سره کوي. څو يې د د ادي:

بوغچې (۱) ته لو ړشه (۲) رنګ په رنګ رو وره ګلونه

خزون (۳) لګیږي بیا به وکې آرمونه ونه (٤)، (*)

دا شیری ځانته خاص بچکی لري هغه‌ورسره په‌خاص انداز وا یی موږ یې د بچکیو په‌ځای لنډی دا سې ورسره غبر ګوو:

چې لوس (۵) دې روکی (٦) په‌خندو (۷) شوې

خزون لګیږي بیا به وکې ارمونه ونه

زه‌دې له لوس نه په‌خند وخوشوله (۸) شومه

خزون لګیږي بیا به وکې ارمونه ونه

بوغچې ته‌لو ړشه‌رنګ په‌رنګ‌رووړه (۹) ګلونه

خزون لګیږي بیا به وکې ارمونه ونه

* * *

لژ ه شو ه ر ســه (۱۰) ړ نګــه

ورځی سره‌خو ندي (۱۱) شپی بدی‌تو لش‌و یینه (۱۲)

د سپینې خو لې بیه دې وا یه

ورځې سره خو ندي شپې بدی‌تو لش‌و یینه

که سرسی لاړ شي با قیدار به‌خومره شمه

ورځی‌سره خو ندي شپی بدی‌تو لش و یینه

---

(۱) باغچې، (۲) لاړشه، (۳) خزان، (٤) آرمانونه

(*) وګوری ءفولکلوري ګیلهی ، ۵ ۵ ۳ ۱ کال، ۱۲۱ مخ .

(۵) لاس (٦) راکی (۷) خندا (۸) خوشاله (۹) راوړه

(۱۰) سره (۱۱) خاندي (۱۲) وهینه

لژ ه شوه ر سه ړ نگه
ورځې سره خوندي شپې بدې تو لش و یینه

* * *

برخې اخلی دي چا په گلو چا ازغیو کې او ېد لیدي
ارچا ته (۱) اخلی برخې رسیدلي دي
د زنې خال دې مجلسی دی
ارچا ته اخلی برخې رسیدلی دي
د زنی خال دې سرور په خولا کوینه
ارچا ته اخلی برخې رسیدلی دي
برخې اخلی دي چا په گلو چا ازغیو کې او ېد لېدي
ارچا ته اخلی برخې رسیدلی دي
( زیبري کالنی ، ۱۳۵۷ کال )

* * *

دلو یانو شپرې چې بچکی ورسره اچوي ځانگړې بڼه لري دمثال په ډول دادوې فورمې وگورۍ چې څومره په زړه پورې او خوندورې دي :

دمیلمانو خذمت روا دی که خوک وپوهیږي
تریم چای چلم الگیږي
دمیلمانو عزت په وکړي ښه ځوانان دي
مشرا ن دي که کشران دي
کټ بستري ته ضرورت دی که را ورسیږي
تریم چای چلم الگیږي

(۱) هرچا ته .

د میلمانو خدمت به وکړي په پښتو لري دوی

جامه دې مېړه و لـري دوی

د ښادۍ شپه ده که څه را کړي زړه یې نه بدېږي

تریخ چـای چلـم لګېـږي

* * *

په عشق کې ډېر لري مزلونه کېږي

تورو ګور ګورو کې ور یادیدنونه کېږي

د دیدن وخت به درنه تیر شی

زر شـه بېـړه وکـړه

بیا په تیر وخت کې ارمانونه کېږي

تورو ګور ګورو کې ور یادیدنونه کېږي

(دا فورسی کیم نورا کاخیل را ته ویلی دي خوراسنه تري کوم)

خورو (۱) ته توتپ (۲) شول نوزولی (۳) صورتونه

کدیمه ! مه رووولې (٤) بیا داسې کولونه (٥)

زما د زړه توکت ته ګوره

کدیمه ! مه رووولې بیا داسی کولونه

دومره غمونه را لېږه چې ورای یې شمه

کدیمه ! مه رووولې بیا داسې کولونه

خورو ته توتپ شول نوزولی صورتونه

کدیمه ! مه رووولې بیا داسې کولونه

---

(۱) خاورو (۲) تیپت (۳) نازولی (٤) راولې، (٥) کالونه

ټاکه (٦) غرمه دو (٧) اشکون (٨) له ټنډې سرېږه

ليلو (٩) او به په سپين چور ګل (١٠) کې ورکوينه

په بوغ (١١) کې ګرځې خور مه غوړې (١٢)

ليلو او به په سپين چور ګل کې ورکوينه

په سترګو ړوند شې خورمه زه وړلو ره يمه

ليلو او به په سپين چور ګل کې ورکوينه

ټاکه غرمه دو اشکون له ټنډې سرېږه

ليلو او به په سپين چور ګل کې ورکوينه

(د پسرلي په برخه کې هم دا فورمه راوړل شوې ده)

* * *

جانانه چېرې دې بونډې (١٣) وتلې دينه

بونډو نه روشه (١٤) ولمونه (١٥) روغلې (١٦) دينه

خلک ويشتل په توپانچو کې

بونډو نه روشه و لمونه روغلې دينه

زه دې ويشتلی په خما رو سترګو يمه

بونډو نه روشه و لمونه روغلې دينه

جانانه چېرې دې بونډې وتلې دينه

بونډو نه روشه و لمونه روغلې دينه

(فولکلوري ګېډۍ، ۱۳۵۵ کال)

* * *

دا هم څو سندرې (لنډۍ) چې تر پامونو وروسته يې کوي :

---

(٦) ټکنده (٧) ده (٨) داشقان (٩) ليلی (١٠) چارګل (١١) باغ
(١٢) غواړې (١٣) باندې (١٤) راشه (١٥) ميلمانه (١٦) راغلیء

عالمه يو تر بل چار يږي ء
مادې مجلس يا ران ليده چې خاورې شوه نه
يارانو يوتر بل چار يږي ء
د نيا فانۍ ده ار ما نجن دي صور تونه
چې جنګ ته لاړ شي بيا به راشي
چې په مرګ سړشي بيا به نه راشي مينه
په کنډو ژرر پنا کېږه
ته غه شمله دې باد وهي ما ژړو ينه
تو تې تو تې ژړه به راتول کم
راتول به نه کم په جانان پرا ته لاسونه

## ۲- ازادې شېړۍ :

هغه شېړۍ چې ماشومان يې په خپله کوي دالغتی شېړۍ نه دي، په يوا و بل بانديې نه سره کوي بلکې په ازاد ډول يې په خپله دخوشالۍ او تو کو په ډول جوړوي اوآزادی شېړۍ يې بولی، دمثال دپاره دا څو نور سې وګورۍ :

کربوړۍ ، بوړۍ کولمې دی بوړۍ بوړۍ

*　　*　　*

توره اوښه بړوهه خيټه په خپړ وهه

*　　*　　*

يتو پوسته څي يموغورو نجه څي

* * *

ژوړه ژوړه توبه ترخټ کی دوبه بياغوړو وينه
روتوو (راتاو) شه لو نګينه

*　　*　　*

غور غو مبکه، غورغو مبکه، کو پيرو غو يې بو تلې
غورغو مبکه، غورغو مبکه، مسلمو نوغوو يې پر پښوي

## ۳- لغتي شېړۍ (شعر جنگي):

واړه هلکان په خپلو منځو کې لغتي شېړۍ هم اوبلې بانـدې داسې سره کوي چې يو څل يو هلك يوه شېړۍ په يوه باندې وکړي او هغه په شېړۍ سره ښه سپك کړي بل هلك چې شېړۍ ور باندې شوې ده سمد ستي د هغې شېړۍ ځخې ور گرزوي او د شېړۍ سر ور ماتوي په دې ډول سره لغتي شېړۍ د دوی ترمنځ تر هغه وخته پورې په فی البديهه ډول جريان او دوام لري څو چې په اخر کې يو تن د شېړۍ له کولو نه عاجز شي او نورې شېړۍ ترې هېرې شي، هغه هلك چې د شېر يو شعر يې (شعر يې) جاري وي په خير او سلامت هلك باندې چې شېړۍ يې هېرې شوې دي څو زياتې نورې شېړۍ هم کوي چې ښه يې زهير کړي.

د ماشومانو په شېړيو کې نا آشنا کلمې او د پرد يو ژبو لغتو نه او کلمې نه ليدل کېږي بلکې د دوی شېړۍ طبيعي بڼه لري د لغتي شېر يو د پاره د اورو سته څو وگورئ:

شا ير ون سی گله کېږ دي خرڅوم يې اکه پسو نه

پـه بــر يتو و ا يـم ( و هــم ) لـو سو نـه

* * *

يـو ه به تـه کــې يـو ه بـه ز ه کــم

لــو ســی بـــه د ې گنـله يـــر ه کــــم

دا چې د ماشو مانو د لغتي شېر يو بڼه ډېره لوښه او رندا نه ده نو موږ يې په جلا پا نوکې راوړل غواړو او د لته ورځنه د لو ځی ښې په اثر د خپر بد و نه ډډه کوو.

## ۴- خپل خپل شېړۍ:

دا ډول شېړۍ کوچني ماشومان په خپل منځ کې په ډېر خوندا وـ جوش سره کوي، که څېر شو د دوی (ماشومانو) شېړۍ د خپل ما حول

اوچا پېرو يال د پښتو طبيعي رنگ‌لري، نوځکه يکې پردي کلمې او نا آشنا لغتو نه‌ده ېريا بيخي نه ليدل کيږي.

ماشونچې يوځای کې د خو شالي او ساعتيري له‌پاره سره ټول شي او شېري بولي (سره کوی) په شېر يو کې دومره خيال نه‌ساتي چې داځه ډول شېري دي، بڼه يې نو څه‌ده که نه؟ دوی رندا نه‌او لوڅې شېری په‌خو ند سره کوي موږ دا يې يوازې په‌خپل خپل شېرـ يوچې دوی يې په‌خپل منځ کې په خو شالي سره کوي‌او هرراز موضوع په‌کې څر گند يږي څو فو رمې په ورو سته ډول دمثال له‌پاره راوړلی شو:

گوډه گو ډه پښه وا يه (وهه)
يموږ (زموږ) کلي کې يې مه وا يه
بل کلی کې يې ښه وا يه

ياداچې:

جگه جگه پښه وا يه
دا کلی کې يې مه وا يه
پردي کلی کې يې ښه وايه
* * *
جنگه جنگه تووډ (تاود) شه
تو (تا) ته به نيغې و کم
زه بدې (به دې) ننداري وکم
* * *
ښې سرې مستې وای
سورگلولی سې پکې‌ووړ (سات) وای
ښه ځون (ځان) مې په موړ وا ی

یادا چې :

ښې ټېنګې مستې وای

سور ګلالی (جواری) مې پهکې وور (مات) وای

ښهزړې مې پهسوړ وای

یادا چې :

ښې ټوکې تروې وای

ښه ګلالی مې په کې وور وای

ښه ځون مې پرې موړ وای

* * *

ښه مېتره رمه وای

په تر پو نو (تر پا نو) کې مې رنګه وای

ښه په کې بړنګه وای

* * *

پېرې په د ګري

یو تندی ورغو مې خري

نه يې ښېښته

نه يې ښنګري

* * *

ژوره ، ژوره ، ژوره (ژاره)

تو (تا) به ترخټ کی

دو (دا) به بیاغوره (غاره) وهینه (وهینه)

پهدا اوړکنلو رو (را) تو (تاو) شه نوزنینه (نازنینه)

* * *

مه ژوړه ، مه ژوړه ، مه ژوړه
وخت به دې روشی
ته به بیا ورځې په سینه
ور توو (تاو) شه نوزنینه
* * *
روغله (راغله) رېژه روغله
شین د ونګ (دانګ) یې دې په لوس کې
ستر یې نسی (نیسی) کمکی ترې خلوس کسی
* * *
روغله ریژه روغله
شین دونګ یی په لوس (لاس) کی
ستر وهی کمکی ترې خلوس (خلاص) کی
* * *
سوال : سوره (ساړه) غوړې (غواړې) که تووده (تاوده) ؟
اپو ، اپو ، اپو، ګرسی دو(ده) .
ځواب : سوړه غوړم .
سوال: سوړه ځوړې که توو ده ؟
اوښی ، اوښی، اوښی یېخ (یخ) دی
ځواب: ګرسی غوړم .
دانو څه شوه ؟
اپو ، اپو ، اپو ، ګرسی دو .
اوښی اوښی او ښی یېخ دی .
* * *

اسمان د شین کید و(*) په باره کې وايي:

شین یې کې زرغون یې کې　　　شنه غوا یه لړمون یې کې

او سپینې تلبر یې کې　　　پلک سرې په سر یې کې

یموډ جو نه په پنډه کې　　　تور یو جو نه کو نډه کې

د پلک غنډ پېنه داسې په خو شالی کوي:

د یک په اپښېد و روغی (۱)　　　پلک په ګډه ېد و روغی

پلک موري پلک مه وهه

روتې به خبرې شی　　　سر به داړې واړې شی

پلک موري پلک مه وهه

پلک په داړه ورک داره وتړي په پړیو　　　چل چل و هی په کلیو

پلک موري پلک مه وهه

روتې به خبرې شی　　　سر به داړې واړې شی

پلک موري پلک مه وهه

ښه خو اړه داسې یاد وي:

ګډه لی (۲) ګډل بیک　　　نغن نغن بیک

روته سم سمی دو　　　غوښو وریژو (وریجو) ښه مړی دو

د خپل ملګري غنډ پېنه داسې په ستوغو کلمو سره کوي:

شر بت یمو (۳) سلګری دی　　　بوغ (٤) ته مې شړ لی دی

ورا غو نو تغو لی دی　　　بر پتکی و وړ کیور غړولی دی

یمو ښنګ ته ملو (ملا) دي ملو دام یې که　　　که نه اوړې کرام یې که

د کاراو چارې په باره کې وايي:

---

(*) د زیاتو معلوماتو له پاره وګورئ زېړی کالنۍ ۱۳۵۷ کال، د لیکوال رساله.

(۱) راغی، (۲) جواری (۳) زما، (٤) باغ ،

وروغ کسه (۵) غول خور کسه* اول یې چارې نه کړې اوس یې بیا کسه
وروغ کسه ژوند یې نسکور کسه* وولې یې چارې نه کړې اوس یې بیا کسه

لټی اونا راستی داسې بده ګڼی:

ګرده ګډیدې ګړی په تنوره (٦) کی دی
وه ګلې یتـو ښویست (۷) په څه کې دی
ګرده ګډېدې چا ډنک په پټنوسه کې دی
وه ګلې یتو فکر په څـه کې دی

ښکلا داسې یادوي:

دا ښکلی وور کی ستردی په موږنه (۸) کې
لکه ګل چې وکړې په ور بو یه (۹) کې
دا ښکلی ژنې (۱۰) روغله (۱۱) په نیشه کې
لکه ګل چې ودرېږی ور بو یه کسې

د ښکلی جلی دواده حال داسې ستا یی:

ډنګو ډنګو ډنګ به دې کم     یوسوتی لو نګ به دې کم
که عمرد پروی ښو وور کیو ترخنګ به دې کم

ډنګو ډنګو ډنګ بــــــه دی کــــــم

ډنګو ډنګو ډنګ به دې کم     یو سوتی لو نګ به دې کم
کــه عــمــر د پــــر وی     سرو ګلو ترخنګ به دی کم

---

(۵) ګو ره ، (٦) تنا ر ه ، (۷) ښا یست .

(۸) د یوځای نوم ، (۹) د کور مخی ته باغچه ، (۱۰) ځوانان ،

(۱۱) را غله ،

دواړه ماشوم د کرارو لو حال او پښه‌چې مو ریې ویده کوي داسې په خندا سره په خپل منځ کې کوی :

چـاوهلی دی چـا وهلی دی    گوډ مېږی په پښه وهلی دی
خوابنی په څمڅه وهلی دی

*  *  *

آه للو للو ، بچی للو ، خوب دې د رشی ترلېمو
آه للو للو ، بچی للو
فاروق مې داسې وده (ویده) دی لکه گوډی درانجو
آه للو للو ، بچی للو

*  *  *

آللی للو للی    پشه (پشو) ناسته په دېری
خیال یې یو وړ په غونډی
کور یې تول کـی پـه لکی    آللی للو للی

دشنو ستر گو غند پېغه داسی کوی :

شین سترگې بغلی    په ربه کی ووزده کېږده
ورته تو غنگه که لکی    شین سترگی بغلی

خدمت او سپکه داسی سره یادوی :

تو به یمو (۱) خدمت که    ته وو خته (۲) یی یمو کمه کی
کله به یی رسه (۳) سمه کی
تو به یمو خدمت که    ته وو خته یی یمو سپکه کی
خپله لپاره به ورکه کی

دتوکو او خوشالی دپاره داسی شېری هم کوی :

---

(۱) زما ، (۲) آخته ، (۳) راسره

متی ته وېلوړ (۱) یم نه شرمېږم نه ډورېږم (۲)
مېدون (۳) ته در تېرېږم

*　　*　　*

متی ته وېلوړ یی نه شرمېږې نه ډورېږې
مېدون ته رو تېرېږې

*　　*　　*

چې مېدون کی جګ شم شنې ګولۍ ورېږې
تر بورسی نه یی چې رو ودرېږې

*　　*　　*

تره زای (زوی) سی ملک دی زه یی خته پسې شورېږم
هېچا نه نه ډورېږم

له دغو شعرو نه وروسته، راغلی یاد له شوي ملګري بیا سره یوځای غونډېږي ، د ملګریو په منځ کې چې څوک ښه غږونه لري ، دغو نه په خندا او مینه سره غواړي چې بیا څو لوړې غږنۍ سندرې ورته ووایي (وکړي) . د ملګریو دغې غوښتنې له مخې هغه ملګري چې ښه غږونه لري په لوړو زړو وړونکو غږونو سره په ګډه څو سندرې کوي ، دوی داسې په نرۍ غږ سره سندرې کوي ته به وایې چې شپېلۍ وهي ، کله چې څو غږنۍ جګې سندرې په لوړ غږ وکړي په آخر کې د دوی نور ملګري په ګډه سره غور څې پرې کوي .

د سندرو دا برخه د ماشومانو د غږنیو سندرو په وخت کې جوته او په ګوته شوه ، خو دا څو یې د لیکوال وکوری چې د ماشومانو د شپړیو او

---

(۱) ولاړ، (۲) دارېږم ، (۳) مېدان .

فولکلوریك ادب مجلس او خوشالی په زیاته خندا سره پرې پای ته رسیږی او دوی له دېوروسته یوله بل نه جلا کیږی اوخپلو کورونو ته ځی :

راشه پـــه دې بـه فیصله کـړو
ځوك چی خپه وی هغه دی خدای خوشالوینه
یوه خـــو دی بـلـه ور پسې وی
ځوك چې پې مخې یارلری رنځور به وینه
راشه دې ځای کې به یې پر یږدو
داسې به یې پریږدوچې دچا له غیږې ځینه
راشـــه پــــه دې د فیصلـه وی
خدای دې حاضر مجلس ته ورکی جنتونه

**یادونه :** داسندرې هغه هلکان چی په مالونو پسې غرو ته دځراو پوولو لهپاره ځی دغره په یوه لمن کې په زیاته مینه سره کوی ، البته دالندی دوی دلویانو په شان زده دی او په ډیر زړه ورونکی ډول سره یې کوي .                    (پای)



# کوروداني

د (فولکلوري ګلونه) کتاب د چاپ د چارو په بېلا بېلو برخو کې
د دولتي مطبعې دغو لاندې محترمو برخه اخستې ده:

عبد الصمد امیري د حروف چینۍ د څانګې آمر
عبد الغفور سلطاني د زانکوګرافي لوی مدیر
عبد الغني د حروف چینۍ د څانګې مرستیال
پیر محمد میرزازاده د صفحه بست د څانګې آمر
محمد اکبر اهل د طبع حروفي د څانګې باشي

عبدالواحد رحیمی د کتابو د طبعې څانګې سرمرتب
شیر احمد د قضا مجلې د څانګې سرمرتب
شیراحمد نوري د کتابو د طبعې څانګې د سرمرتب مرستیال
عبدالمحمد ولی زاده د قضامجلې د څانګې د سرمرتب مرستیال
ګل کریم سرخ رودی د کتابو د طبعې څانګې مرتب
عبدالله سلیمانخیل د کتابو د تصحیح څانګې مرتب
نور محمد صیفی د کتابو د طبعې څانګې مرتب
آمنه هاشمی د کتابو د طبعې څانګې کارګره
خورشید پوپل د کتابو د طبعې څانګې کارګره
شاپیری نظامی د کتابو د طبعې څانګې کارګره
نوریه رحیمی د کتابو د طبعې څانګې کارګره
نصیر احمد د قضا مجلې د څانګې مرتب
سید محمد طاهر هاشمی د قضا مجلې د څانګې مرتب
مطیع الله د قضا مجلې د څانګې مرتب
محمد اکبر مهر د قضا مجلې د څانګې مرتب
ملیحه حیدري د قضا مجلې د څانګې کارګره
غلام سخی د قضا مجلې د څانګې مرتب




نصرالله خیسوري د صحافۍ د څانګې کارګر
موږ د دغو محترمو او ګرانو له نه ستړې کېدونکې هڅې نه پوره پوره مننه کوو او په ورسپارل شوې وظیفه کې یې زیات بریا لیتوب غواړو او کور ودانی ورته وایو .

**تل دې وي د دوی د لاسو تنا کې**
**تل دې وي د دوی د متو زور**

# یادونه:

محترمو او درنو لوستونکو! د (فولکلوري
گلونه) کتاب څېړنې ځای یونه، په تېره د ښځو، لوبو
او ماشومانو د فولکلور زیاته برخه د لیکوال په لهجه سره
لیکل شوې ده. د ښځو او ماشومانو د برخې سندرې
(لنډۍ) او یا موږ (شروکي) د لیکوال په مورنۍ لهجه
راوړل شوي، خو ددې کار ترڅنګ په لمن لیک کې
د کلمو معیاري شکل هم ورسره راوړل شوی دی،
ځای ځای که پاتې وي، لوستونکي به د لیکوال لهجه
په نظر کې ونیسي (البته دا کار د لهجې په خاطر شوی دی).
دا یادونه هم ضروري ده چې، همکن طباعتي تېر
وتنې په کتاب کې زموږ له هڅې سره سره پاتې وي،
محترم لوستونکي به یې د زیات لطف او مهربانۍ
له مخې سمې کړي او موږ به ددې زحمت له امله وبښي.

منگل

١٣٦٠/٥/٢٥

# folklorí gulúna

by











Ali Mohammad Mangal

Academy of Sciences of Afgh.
Kabul Afghanistan
1981

دولتي مطبعه